# د اشغال د خاتمې ټرون

## لومړی کلیزه

د اشغال دخاتمې ټرون د لومړی کلیزې په مناسبت
د لیکل شویو او اورول شویو مقالو ټولګه

# دکتاب مشخصات

**دکتاب نوم:**

د اشغال د خاتمې تړون لومړۍ کلیزه

**لیکـوال:**

بیلابیل لیکوال او عالمان

**ترتیب:**

حافظ نور احمد سعید

**چاپ وار:**

لومړی

**چاپ کال:**

۱۴۴۲هـ ق، ذي القعدة /۱٤۰۰هـ ش، سرطان

**تیــــراژ:**

۱۰۰۰۰

**د خپرونو لړ:**

۲۹

**خپرووونکی ارګان:**

د فرهنګي کمیسیون د تألیف او ترجمې اداره

# لړلیک

بِسۡمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحۡمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ

# د اشغال د خاتمې تړون لومړۍ کليزه

د ۱۳۹۹ هش کال د کب پر ۱۰مه نيټه د اشغال د خاتمې د تړون لومړۍ کليزې په مناسبت دوه لوی سمينارونه داير شول، په دې سمينارونو کې علماء کرامو، ليکوالو او سياسي څېړونکو د دوحې تړون د اهميت، شرعي حيثيت او د همدې تړون دعملي کيدو او نقض د پايلو په اړه مقالې او ويناوې واورولې.

سمينارونو ته د ليکل شويو او اورول شويو مقالو اهميت ته په پام سره دفرهنگي کميسيون د تأليف او ترجمې ادارې وپتيله چې همدا مقالې په کتابي بڼه چاپ شي، يو داچې تر ډيرو خلکو پورې به ورسيږي او بل داچې له ضايع کيدو به وساتل شي او تر ډيره به خوندي پاته شي.

په کتاب کې اول د د دوحې د توافقنامې دري او پښتو متن راوړل شوی، ورپسې يادوو شوو سمينارونو ته د اسلامي امارت د مرستيالانو اورول شوي پيغامونه ځای شوي، بيا هغه مقالې راوړل شوې چې د توافقنامې شرعي اړخ پکې بارز دی، ورپسې هغه مقالې اوډل شوې چې تاريخي حيثيت لري او وروسته په ترتيب سره هغه مقالې راغلې دي چې د دوحې د تړون مختلف ابعاد او د افغانستان روان وضعيت پکې څېړل شوی دی.

دې کتاب کې چې کومې مقالې ترتيب شوې، په لوست سره يې لوستونکي کولای شي چې د اسلامي امارت سوله ييز دريځ، پاکه داعيه او په مجموع کې دين او وطن ته د اسلامي امارت دمشرتابه کلکه ژمنتيا درک کړي.

د افغانستان اسلامي امارت

د فرهنگي چارو کميسيون

د تأليف او ژباړې اداره

شوال/ ۱۴۴۲هـ ق/ جوزا/۱۴۰۰هش/ جون/۲۰۲۱م

## متن فارسی موافقتنامه

## صلح آمریکا با طالبان

بین امارت اسلامی افغانستان که توسط ایالات متحده به‌عنوان یک دولت به رسمیت شناخته نمی‌شود و به نام طالبان شناخته می‌شود و ایالات متحده امریکا

۲۹ فبروری ۲۰۲۰ /۵ رجب ۱۴۴۱ هـ ق / ۱۰ حوت ۱۳۹۸ هـ ش

**موافقت‌نامه صلح جامع متشکل از چهار بخش است:**

تضمین‌ها و میکانیزم‌های اجرایی که از استفاده از خاک افغانستان توسط هرگونه گروه یا فرد علیه امنیت ایالات متحده و متحدان آن جلوگیری کند.

تضمین‌ها، میکانیزم‌های اجرایی و اعلام جدول زمانی برای خروج تمام نیروهای خارجی از افغانستان.

پس از اعلام تضمین‌ها برای خروج کامل نیروهای خارجی و جدول‌زمانی در حضور شاهدان بین‌المللی، و تضمین و اعلام این‌که از خاک افغانستان علیه امنیت ایالات متحده و متحدانش استفاده نخواهد شد، در حضور شاهدان بین‌المللی، امارت اسلامی طالبان که توسط ایالات متحده به‌عنوان یک دولت شناخته نمی‌شود و به‌نام طالبان شناخته می‌شود مذاکرات

بین‌الافغانی را با طرف‌های افغان در ۱۰ مارچ ۲۰۲۰ مطابق ۱۵ رجب ۱۴۴۱ هجری قمری و ۲۰ حوت ۱۳۹۸ هجری شمسی شروع خواهدکرد.

آتش‌بس دائمی و جامع یک موضوع آجندای گفت‌وگو و مذاکرات بین‌الافغانی خواهد بود. شرکت‌کنندگان مذاکرات بین‌الافغانی در مورد تاریخ و چگونگی آتش‌بس دائمی و فراگیر، از جمله میکانیزم‌های اجرایی بحث خواهندکرد که همراه با تکمیل و توافق در مورد نقشه راه سیاسی آینده افغانستان اعلام خواهد شد.

چهار بخش فوق با هم مرتبط و با هم وابسته هستند و هر یک مطابق جدول زمانی توافق‌شده و شرایط توافق‌شده تطبیق خواهد شد. توافق در مورد دو بخش اول راه را برای دو بخش آخر هموار می‌کند.

در ذیل متن موافقت‌نامه برای تطبیق دو بخش اول است. هر دو طرف موافق هستندکه این دو بخش با هم مرتبط و با هم وابسته می‌باشند. تعهدات امارت اسلامی افغانستان که توسط ایالات متحده به‌عنوان یک دولت شناخته نمی‌شود و به‌عنوان طالبان شناخته می‌شود، در چوکات این موافقت‌نامه در مناطق تحت کنترل‌شان تا زمان تشکیل حکومت اسلامی جدید پسا توافق افغانستان که طبق گفت‌وگو و مذاکرات بین‌الافغانی تعیین می‌شود، اجرا می‌شود.

## بخش اول:

ایالات متحده متعهد است که تمام نیروهای نظامی امریکا، متحدان و شرکای ائتلافی، به‌شمول تمام کارمندان غیرنظامی و غیردیپلماتیک، پیمانکاران امنیتی خصوصی، مربیان، مشاوران و پرسنل خدمات حمایتی خود را در عرض ۱۴ ماه پس از اعلام این موافقت‌نامه خارج کند و اقدامات ذیل را در این زمینه روی دست خواهدگرفت.

**الف.** ایالات متحده، متحدان آن و ائتلاف اقدامات زیر را در ۱۳۵ روز اول انجام خواهند داد:

۱) آن‌ها تعداد نیروهای امریکایی در افغانستان را به ۸۶۰۰ [تن] کاهش خواهند داد و به همان تناسب تعداد نیروهای متحدان و نیروهای ائتلاف کاهش داده می‌شود.

۲) ایالات متحده، متحدان آن و ائتلاف تمام نیروهای خود را از ۵ پایگاه نظامی خارج خواهندکرد.

**ب.** با توجه به تعهد و عمل امارت اسلامی طالبان - که توسط ایالات متحده به‌عنوان یک دولت شناخته نمی‌شود و به‌عنوان طالبان شناخته می‌شود- در بخش دوم این موافقت‌نامه، ایالات متحده، متحدان آن و ائتلاف این اقدامات را اجرا خواهندکرد:

ایالات متحده، متحدان آن و ائتلاف، خروج کلیه نیروهای باقی‌مانده را از افغانستان طی ۹ ماه‌ونیم باقی مانده تکمیل خواهندکرد.

ایالات متحده، متحدان آن و ائتلاف تمام نیروهای خود را از پایگاه‌های باقی‌مانده خارج خواهندکرد.

**ج.** ایالات متحده متعهد است که با تمام طرف‌های ذیربط فوراکار در مورد آزادسازی هرچه زودتر اسیران جنگی و سیاسی را به‌عنوان یک اقدام اعتمادسازی شروع کند. تا ۵ هزار زندانی امارت اسلامی طالبان - که توسط ایالات متحده به‌عنوان یک دولت به رسمیت شناخته نمی‌شود و به‌عنوان طالبان شناخته می‌شود- و تا ۱ هزار زندانی طرف دیگر تا ۱۰ مارچ ۲۰۲۰، روز اول مذاکرات بین‌الافغانی که مطابق است به ۱۵ رجب ۱۴۴۱ هجری قمری و ۲۰ حوت ۱۳۹۸ هجری خورشیدی آزاد خواهند شد. طرف‌های ذیربط هدف دارندکه تمام زندانیان باقی‌مانده را طی سه

ماه بعدی آزادکنند. ایالات متحده به تکمیل این هدف متعهد است. امارت اسلامی افغانستان - که توسط ایالات متحده به‌عنوان یک دولت به رسمیت شناخته نمی‌شود و به‌عنوان طالبان شناخته می‌شود- متعهد است که زندانیان آزادشده‌اش به مسئولیت‌های ذکرشده در این موافقت‌نامه متعهد باشند تا تهدیدی از جانب آن‌ها متوجه امنیت ایالات‌متحده و متحدانش نباشد.

**د.** با شروع مذاکرات بین‌الافغانی، ایالات متحده بازنگری اداری خود را در مورد تحریم‌های فعلی امریکا و لیست پاداش‌ها علیه اعضای امارات اسلامی افغانستان - که توسط ایالات متحده به‌عنوان یک دولت به رسمیت شناخته نمی‌شود و به‌عنوان طالبان شناخته می‌شود- با هدف برداشتن این تحریم‌ها تا ۲۷ آگست ۲۰۲۰ که مطابق با ۸ محرم ۱۴۴۲ هجری قمری و ۶ سنبله ۱۳۹۹ هجری خورشیدی است، آغاز خواهدکرد.

**هـ.** با شروع مذاکرات بین‌الافغانی، ایالات متحده تعامل دیپلماتیک خود را با سایر اعضای شورای امنیت سازمان ملل و افغانستان برای حذف نام اعضای امارات اسلامی افغانستان - که توسط ایالات متحده به‌عنوان یک دولت به رسمیت شناخته نمی‌شود و به‌عنوان طالبان شناخته می‌شود- از لیست تحریم‌ها با هدف انجام آن تا تاریخ ۲۹ می سال ۲۰۲۰ که مطابق است با ۶ شوال ۱۴۴۱ هجری قمری و ۹ جوزا ۱۳۹۹ هجری خورشیدی، شروع خواهدکرد.

**و.** ایالات متحده و متحدانش از تهدید یا استفاده از زور علیه تمامیت ارضی یا استقلال سیاسی افغانستان یا مداخله در امورد داخلی این کشور خودداری خواهندکرد.

## بخش دوم

همراه با اعلام این موافقت‌نامه، امارت اسلامی طالبان - که توسط ایالات متحده به‌عنوان دولت شناخته نمی‌شود و به‌عنوان طالبان شناخته می‌شود- گام‌های زیر را برای جلوگیری استفاده هرگروه یا فرد از جمله القاعده از خاک افغانستان برای تهدید امنیت ایالات متحده و متحدانش، برخواهد داشت:

۱. امارت اسلامی افغانستان - که توسط ایالات متحده به‌عنوان دولت شناخته نمی‌شود و به‌عنوان طالبان شناخته می‌شود- به هیچ یک از اعضایش، سایر افراد وگروه‌ها از جمله القاعده اجازه نخواهد دادکه از خاک افغانستان برای تهدید امنیت ایالات متحده و متحدانش استفاده کنند.

۲. امارت اسلامی طالبان - که توسط ایالات متحده به‌عنوان دولت شناخته نمی‌شود و به‌عنوان طالبان شناخته می‌شود- پیام واضحی خواهد داشت که آن‌هایی که برای امنیت ایالات متحده تهدید محسوب می‌شوند در افغانستان جای ندارند و به اعضای امارت اسلامی - که توسط ایالات متحده به‌عنوان دولت شناخته نمی‌شود و به‌عنوان طالبان شناخته می‌شود- هدایت خواهد دادکه باگروه‌ها یا افرادی‌که امنیت ایالات متحده و متحدانش را تهدید می‌کنند، همکاری نکنند.

۳. امارت اسلامی افغانستان - که توسط ایالات متحده به‌عنوان دولت شناخته نمی‌شود و به‌عنوان طالبان شناخته می‌شود- هرگونه گروه یا فرد را از تهدید امنیت ایالات متحده و متحدانش ممانعت خواهدکرد، جلو سربازگیری، آموزش و تمویل آن‌ها را خواهدگرفت و و مطابق تعهداتش در این موافقت‌نامه از آن‌ها میزبانی نخواهدکرد.

۴. امارات اسلامی افغانستان - که توسط ایالات متحده به‌عنوان دولت شناخته نمی‌شود و به‌عنوان طالبان شناخته می‌شود- متعهد است‌که با کسانی‌که به دنبال پناهندگی یا اقامت در افغانستان هستند طبق قانون مهاجرت بین‌المللی و تعهداتش در این موافقت‌نامه عمل خواهدکرد تا از

جانب چنین افراد تهدیدی متوجه امنیت ایالات متحده و متحدانش نباشد.

۵. امارت اسلامی افغانستان -که توسط ایالات متحده به‌عنوان دولت شناخته نمی‌شود و به‌عنوان طالبان شناخته می‌شود- برای کسانی که تهدیدی برای امنیت ایالات متحده و متحدانش محسوب شوند، ویزا، پاسپورت، مجوز سفر یا سایر اسناد قانونی را برای ورود آن‌ها به افغانستان فراهم نخواهدکرد.

## بخش سوم

۱. ایالات متحده خواستار به رسمیت شناختن و تأیید این موافقت‌نامه از جانب شورای امنیت سازمان ملل خواهد شد.

۲. ایالات متحده و امارت اسلامی افغانستان -که توسط ایالات متحده به‌عنوان دولت شناخته نمی‌شود و به‌عنوان طالبان شناخته می‌شود- به دنبال روابط مثبت با یکدیگر هستند و انتظار دارندکه روابط بین ایالات متحده و حکومت اسلامی جدید پسا توافق که توسط مذاکرات بین‌الافغانی تعیین می‌شود، مثبت باشد.

۳. ایالات متحده به دنبال همکاری اقتصادی با حکومت اسلامی جدید پساتوافق که توسط مذاکرات بین‌الافغانی تعیین می‌شود، برای بازسازی [افغانستان] خواهد بود و در امور داخلی آن دخالت نخواهدکرد.

به تاریخ ۲۹ فبروری ۲۰۲۰ که مطابق است با ۵ رجب ۱۴۴۱ هجری قمری و ۱۰ حوت ۱۳۹۸ هجری خورشیدی در دو نسخه به زبان پشتو، دری و انگلیسی که هر متن اعتبار یکسان دارد، در دوحه‌ی قطر به امضا رسید.

❊ ❊ ❊

# د توافقنامې پښتو متن

په افغانستان کې د سولې راوستلو لپاره د افغانستان اسلامي امارت، چې متحده ایالتونه یې د دولت په توګه نه پیژني او د طالبانو په نوم یې پیژني، او د امریکا د متحده ایالتونو تر منځ توافقنامه

۵/رجب/۱۴۴۱هـ ق – ۱۰/حوت/۱۳۹۸هـ ش – ۲۹/فبروري/۲۰۲۰م

## د هر اړخیزې سولې توافقنامه له څلورو برخو جوړیږي:

۱- هغه تضمینونه او د تنفیذ میکانیزمونه چې د هرې ډلې یا شخص لخوا د متحده ایالتونو او د هغوی د متحدینو د امنیت په خلاف د افغانستان د خاورې دکارولو څخه مخنیوی وکړي.

۲- له افغانستان څخه د ټولو بهرنیو ځواکونو د وتلو لپاره تضمینونه، د تنفیذ میکانیزمونه او د یوه مهالویش اعلان.

۳- د نړیوالو شاهدانو په حضورکې د بهرنیو ځواکونو د بشپړ وتلو د تضمینونو او د مهالویش تر اعلان وروسته، او د نړیوالو شاهدانو په حضورکې د دې تضمینونو او اعلان سره چې د افغانستان خاوره به د متحده ایالتونو او د هغوی د متحدینو د امنیت په خلاف نه کارول کیږي، د افغانستان اسلامي امارت، چې متحده ایالتونه یې د دولت په توګه نه پیژني او د طالبانو په نوم یې پیژني، به له افغان جهتونو سره په ۱۵/رجب/۱۴۴۱هـ ق – ۲۰/حوت/۱۳۹۸هـ ش – ۱۰/مارچ/۲۰۲۰م تاریخ بین الافغاني مذاکرات پیل کړي.

۴- دایمي او هراړخیز اوربند به د بین الافغاني ډیالوګ او مذاکراتو په اجنډا کې یوه موضوع وي. د بین الافغاني مذاکراتو ګډونوال به د تطبیق د ګډو میکانیزمونو په شمول د یوه دایمي او هراړخیز اوربند په نیټې او څرنګوالي بحث وکړي، او د افغانستان د راتلونکي سیاسي نقشې له بشپړیدا او توافق سره به یې د یوې برخې په توګه اعلان کړي.

پورتنۍ څلور برخې یوه له بلې سره مرتبطې دي او هره برخه به د توافق شوي مهالویش او توافق شویو موادو مطابق تطبیق شي. پر لومړنیو دوو برخو توافق، دوو وروستنیو برخو ته لار پرانیزي.

لاندې د توافقنامې هغه متن دی چې د پورتنۍ لومړۍ او دوهمې برخې تطبیق بیانوي. دواړو غاړو توافق کړی چې دغه دوې برخې یوه له بلې سره تړلې دي. په دې توافقنامه کې به د افغانستان اسلامي امارت، چې متحده ایالتونه یې د دولت په توګه نه پیژني او د طالبانو په نوم یې پیژني، مسئولیتونه په هغو سیموکې وي چې د دوی تر ولکې لاندې دي، ترهغو چې د بین الافغاني ډیالوګ او مذاکراتو له لارې تر جوړجاړي وروسته نوی افغان اسلامي حکومت جوړ شي.

## لومړۍ برخه

متحده ایالتونه ژمنه کوي چې د متحده ایالتونو، متحدینو او د ائتلافي شریکانو ټول نظامي ځواکونه، د ټول غیر دیپلوماتیک ملکي پرسونل، شخصي امنیتي قراردادیانو، روزونکو، مشاورینو او د حمایوي خدماتو پرسونل په ګډون، د دې توافقنامې له اعلان سره سم په څوارلسو (۱۴) میاشتوکې له افغانستان څخه وباسي، او په دې اړه به لاندیني اقدامات کوي:

**الف:** متحده ایالتونه، د هغوی متحدین او ائتلاف به په لومړنیو یو سل او پنځه دیرش (۱۳۵) ورځوکې لاندیني اقدامات کوي:

۱- په افغانستان کې د متحده ایالتونو د ځواکونو شمیر به اته زره او شپږ سوه (۸۶۰۰) ته راټیټوي او په ورته اندول کې به د هغوی د متحدینو او ائتلافي ځواکونو په شمیرکې کمښت راولي.

۲- متحده ایالتونه، د هغوی متحدین او ائتلاف به خپل ځواکونه له پنځو (۵) نظامي اډو څخه باسي.

**ب:** د دې توافقنامې په دوهمه برخه کې شته مسئولیتونو ته د افغانستان اسلامي امارت، چې متحده ایالتونه یې د دولت په توګه نه پیژني او د طالبانو په نوم یې پیژني، د ژمنتیا او عمل سره به متحده ایالتونه، د هغوی متحدین او ائتلاف لاندیني اقدامات ترسره کوي:

۱- متحده ایالتونه، د هغوی متحدین او ائتلاف به له افغانستان څخه د خپلو ټولو پاتې ځواکونو وتل په پاتې نهه نیمو (۹. ۵) میاشتوکې بشپړکړي.

۲- متحده ایالتونه، د هغوی متحدین او ائتلاف به خپل ټول ځواکونه له پاتې اډو څخه باسي.

**ج:** متحده ایالتونه د اعتماد جوړولو د یوه اقدام په توګه ژمن دي چې د ټولو اړوندو طرفونو په هماهنګۍ او تائید، سملاسي له ټولو طرفونو سره پر یوه پلان سملاسي کار پیل کړي چې جنګي او سیاسي بندیان په چټکۍ خوشي شي. تر پنځه زره (۵۰۰۰) پورې د افغانستان اسلامي امارت، چې متحده ایالتونه یې د دولت په توګه نه پیژني او د طالبانو په نوم یې پیژني، بندیان، او تر زرو (۱۰۰۰) پورې د بلې غاړې بندیان به په ۱۵/رجب/۱۴۴۱هـ ق – ۲۰/حوت/۱۳۹۸هـ ش – ۱۰/مارچ/۲۰۲۰م تاریخ، د بین الافغاني مذاکراتو لومړۍ ورځې پورې، خوشي شي. اړوند طرفونه دا هدف لري چې په ورپسې دریو میاشتوکې پاتې ټول

بنديان خوشي شي. متحده ايالتونه د دغه هدف د بشپړولو ژمنه کوي. د افغانستان اسلامي امارت، چې متحده ايالتونه يې د دولت په توګه نه پيژني او د طالبانو په نوم يې پيژني، ژمنه کوي چې د هغوی خوشي شوي بنديان به په دغه توافقنامه کې شوو مسئوليتونو ته ژمن وي او د متحده ايالتونو او د هغوی د متحدينو امنيت ته به ګواښ نه پيښوي.

**د:** د بين الافغاني مذاکراتو له پيل سره به متحده ايالتونه د افغانستان اسلامي امارت، چې متحده ايالتونه يې د دولت په توګه نه پيژني او د طالبانو په نوم يې پيژني، د غړو په خلاف د متحده ايالتونو د اوسنيو بنديزونو او د جايزې ليست د اداري بياکتنې بهير په دې هدف پيل کړي چې دغه بنديزونه به د ۸/محرم/۱۴۴۲هـ ق – ۲۵/اسد/۱۳۹۹هـ ش – ۱۵/اګست/۲۰۲۰م تاريخ پورې لرې کړي.

**هـ:** د بين الافغاني مذاکراتو له پيل سره به متحده ايالتونه د ملګرو ملتونو د امنيت شورى له نورو غړو او افغانستان سره په دې هدف ديپلوماتيکې هڅې پيل کړي چې د ۲۴/رمضان/۱۴۴۱هـ ق – ۲۸/ثور/۱۳۹۹ هـ ش – ۱۷/مى/۲۰۲۰م تاريخ پورې د بنديزونو له نوملړ څخه د افغانستان اسلامي امارت، چې متحده ايالتونه يې د دولت په توګه نه پيژني او د طالبانو په نوم يې پيژني، د غړو نومونه وايستل شي.

**و:** متحده ايالتونه او متحدين به يې د افغانستان د ځمکنۍ بشپړتيا او سياسي خپلواکۍ په ضد له ځواک اوګواښ څخه کار نه اخلي او نه به يې په کورنيو چاروکې لاسوهنه کوي.

## دوهمه برخه:

د دې توافقنامې له اعلان سره سم به، د افغانستان اسلامي امارت، چې متحده ایالتونه یې د دولت په توګه نه پیژني او د طالبانو په نوم یې پیژني، لاندیني اقدامات ترسره کړي تر څو د القاعدې په شمول د هرې هغې ډلې یا شخص مخنیوی وکړي چې د افغانستان له خاورې څخه د متحده ایالتونو او د هغوی د متحدینو امنیت ګواښي:

۱- د افغانستان اسلامي امارت، چې متحده ایالتونه یې د دولت په توګه نه پیژني او د طالبانو په نوم یې پیژني، به خپل هیڅ غړي او د القاعدې په شمول هیڅ ډلې او یا فرد ته اجازه ورنه کړي چې د افغانستان له خاورې څخه د متحده ایالتونو او د هغوی د متحدینو امنیت ته ګواښ پیښ کړي.

۲- د افغانستان اسلامي امارت، چې متحده ایالتونه یې د دولت په توګه نه پیژني او د طالبانو په نوم یې پیژني، به یو څرګند پیغام ولیږي چې هر هغه څوک چې متحده ایالتونو او د هغوی متحدینو ته امنیتي ګواښ پیښوي په افغانستان کې ځای نلري، او د افغانستان اسلامي امارت، چې متحده ایالتونه یې د دولت په توګه نه پیژني او د طالبانو په نوم یې پیژني، به خپلو غړو ته لارښوونه وکړي چې له هغو ډلو او افرادو سره همکاري ونه کړي چې د متحده ایالتونو او د هغوی د متحدینو امنیت ګواښي.

۳- د افغانستان اسلامي امارت، چې متحده ایالتونه یې د دولت په توګه نه پیژني او د طالبانو په نوم یې پیژني، به په دغه توافقنامه کې د شویو ژمنو مطابق په افغانستان کې د متحده ایالتونو او د هغوی د متحدینو د امنیت له ګواښلو څخه د هرې ډلې یا فرد مخنیوی کوي، او له جلب و

جذب، روزنې او بسپنې ټولولو څخه به يې منع کوي اوکوربه توب به يې نه کوي.

۴- د افغانستان اسلامي امارت، چې متحده ايالتونه يې د دولت په توګه نه پيژني او د طالبانو په نوم يې پيژني، ژمنه کوي چې له هغوکسانو سره چې په افغانستان کې پناه اخلي يا د استوګنې غوښتنه کوي، د مهاجرت د نړيوالو قوانينو او په دغه توافقنامه کې د شوو ژمنو سره سم چلند کوي، تر څو دغه ډول افراد د متحده ايالتونو او د هغوی د متحدينو امنيت ته ګواښ پيښ نه کړي.

۵- د افغانستان اسلامي امارت، چې متحده ايالتونه يې د دولت په توګه نه پيژني او د طالبانو په نوم يې پيژني، به هيڅ يوه بهرني وګړي ته چې د متحده ايالتونو او د هغوی د متحدينو امنيت ګواښي، ويزه، پاسپورټ، د سفر جواز او نور قانوني اسناد ورنه کړي چې افغانستان ته داخل شي.

## دريمه برخه:

۱- متحده ايالتونه به د ملګرو ملتونو د امنيت شورى لخوا د دې توافقنامې په رسميت پيژندلو او تائيد غوښتنه کوي.

۲- متحده ايالتونه او د افغانستان اسلامي امارت، چې متحده ايالتونه يې د دولت په توګه نه پيژني او د طالبانو په نوم يې پيژني، يو له بل سره مثبتې اړيکې غواړي او هيله لري چې د متحده ايالتونو او د بين الافغاني ډيالوګ او مذاکراتو له لارې تر جوړجاړي وروسته د نوي افغان اسلامي حکومت تر منځ اړيکې مثبتې وي.

۳- متحده ايالتونه به د بين الافغاني ډيالوګ او مذاکراتو له لارې تر جوړجاړي وروسته د نوي افغان اسلامي حکومت لپاره د بيارغولو

اقتصادي مرستې وغواړي، او په کورنیو چارو کې به یې لاسوهنه نه کوي.

دغه توافقنامه چې په پښتو، دري او انګلیسي ژبو لیکل شوې ده، د قطر په پلازمینه دوحه کې په ۵/رجب/۱۴۴۱هـ ق – ۱۰/حوت /۱۳۹۸هـ ش – ۲۹/فبروري/۲۰۲۰م لاسلیک شوه، دریواړه متنه یې مساوي اعتبار لري.

## ملاعبدالغني برادر

د افغانستان اسلامي امارت، چې متحده ایالتونه یې د دولت په توګه نه پیژني او د طالبانو په نوم یې پیژني، سیاسي مرستیال او سیاسي دفتر رئیس

## سفیر زلمی خلیلزاد

د افغان سولې لپاره د متحده د متحده ایالتونو ځانګړی استازی

## د اشغال د خاتمې تړون د لومړۍ کليزې په مناسبت دائر شوي سمينار ته د اسلامي امارت د مرستيال مولوي محمد يعقوب مجاهد حفظه الله پيغام

د حوت پر لسمه د اشغال د خاتمې د تړون د لاسليک د لومړۍ کليزې په مناسبت د داير شوي سمينار برخوالو ته!

السلام عليکم ورحمت الله وبرکاته!

محترمو سامعينو يوکال وړاندې په همدې ورځ د افغانستان د اسلامي امارت او امريکا تر منځ د اوږدو او ستونزمنو مذاکراتو څخه وروسته د قطر هيواد په دوحه کې د افغانستان د اشغال د خاتمې تړون امضاء شو.

د اشغال دخاتمې تړون زموږ د مؤمن او مجاهد لس دروان جهاد په بهير کې يو مهم پرمختګ او د نوې مرحلې اغازګڼل کيږي. د دې تړون له مخې خارجي اشغالګرو منلې چې دوی به د ټاکل شوي تقسيم الاقات سره سم د افغانستان اشغال ته د پای ټکی ايږدي او خپل ټول ځواکونه به زموږ له هيواده باسي.

دغه توافق چې د اوږدو مذاکراتو په نتيجه کې رامنځته شوی، دامضاء کيدو وروسته يې نه يوازي داچې د سيمې هيوادونو ملاتړ او هرکلی وکړ، بلکې دملګرو ملتونو له خوا هم تائيد شو او نړيوال اعتبار يې خپل کړ.

دافغانستان مؤمن ولس چې تقريباپه تېرو شلوکلونوکې د بهرني اشغال له امله ډير ځوريدلی دی، داشغال دخاتمې تړون ته د يو ښه پيل په نظرګوري او هيله لري چې، دهمدې توافق د عملي کيدو په صورت کې به زموږګران هيواد له خپلواکۍ، اسلامي نظام او سولې څخه برخمن شي.

زموږ په نظر د افغانستان د مسئلې عملي او منطقي حللاره همداده چې د دوحې په توافق کې يې ښودنه شوې ده، اسلامي امارت له همدې امله دې توافق ته خپله ژمنتيا ښودلې ده. دغه راز مقابل جانب هم بايد په دې پوه وي چې د دواړو اړخونوکتړه د همدې توافق په عملي کيدو او له همدې لارې يو نهايي حل ته په رسيدوکې ده.

په تېرو څه کم شلوکلونوکې موږ وليدل چې داشغالګرو له خوا د بېلابيلو پوځي ستراتيژيو تجربه کولوکومه نتيجه نه درلوده، بلکې ورسره د دوی ځاني او مالي زيانونه اضافه او مسله نوره هم پېچلې شوه. په همدې اساس دعقل او تېرو تجربو غوښتنه داده چې بايد د جنګي ستراتژيو د تکرار پرځای د تفاهم لاره تعقيب شي. د دوحې تړون د همداسي يو سوله ييز حل لپاره لاره نقشه تعين کړې چې بايدګام پرګام عمل ورباندې وشي.

په پای کې دافغانستان د اسلامي امارت مجاهدينو او خپل مؤمن ولس ته ډا ډ ورکوو چې اسلامي امارت ټوله هڅه کوي تر څو له ټولو ممکنه لارو څخه په استفاده د يو اسلامي او خپواک هيواد ارمان ترسره شي.

والسلام عليکم ورحمة الله وبرکاته

د افغانستان اسلامي امارت مرستيال

مولوي محمد يعقوب مجاهد

❊ ❊ ❊

## د اشغال د خاتمې تړون لومړۍ کلیزې په مناسبت دائر شوي سمینار ته د اسلامي امارت د مرستیال الحاج خلیفه ملا سراج الدین حقاني حفظه الله پیغام

بسم الله الرحمن الرحيم

نحمده ونصلي على رسول الكريم امابعد!

قدرمنو قلموالو وروڼو! ترهرڅه وړاندې تاسو ته د دې تاریخي ورځې او تاریخي توافقنامې د لومړۍ کلیزې په مناسبت مبارکي وایم. همدارنګه د هیواد د ازادۍ په لاره کې د روانو جهادي، سیاسي او فرهنګي بریاوو تبریکې هم درته وایم. که حالات مساعد وای ضرور به مې په دې مجلس کې ګډون درسره کړی وای، خو فی الحال به په دې پیغام اکتفاء وکړو.

په دې لارکې چې زموږ څومره خواږه ملګري شهیدان شوي دي، هغوی ټولو لره د خدای تعالی نه په جنت کې لوړې درجې او ببرته پاته کورنیو ته یې جمیل صبر او نعم البدل غواړم! څرنګه چې تاسو ښه پوهیږئ چې زموږ او ستاسو د دې سپېڅلي صف پر سیاسي، جهادي او فرهنګي وحدت نن تقریباً ټوله نړۍ اعتراف کوي، دوستان او دښمنان دواړه پرې معترف دي، چې دا یو نه ماتېدونکی فکري، عقیدوي او ملي صف دی، نو ضروري ده چې موږ نور هم پرخپلمنځي یووالی او وحدت باندي اعتصام وکړو.

د خپلو هغو بریاوو چې د توري په ډګرکې د سرښندونکو مجاهدینو د سپېڅلو وینو په برکت ترلاسه شوې؛ د هغوی د حفاظت لپاره نور هم خپلو مسئولیتونو ته متوجه شو او دا تر هرڅا زیات د اهل قلم او اهل علم وروڼو

مسئولیت جوړیږي، زه په دې اعتراف کوم چې تاسو غونډې اهل قلم مجاهدینو د سنګر د مجاهدینو ترڅنګ ستر قلمي جهاد ترسره کړی، نن ورځ چې زموږ د سپېڅلو سربښندونکو مجاهدینو د قربانیو خارق العاده داستانونه د دنیا والو ترغوږونو او سترګو رسیږي؛ په دې کې د فرهنګي ډګر اهل قلم مجاهدین پوره برخه لري او زموږ د دې تاریخي جهاد د بریا داستان به د تاریخ په پاڼوکې د همدې قلموالو ورونو له برکته ثبتیږي.

زه تاسو ته ډاډ درکوم چې تاسو د دین او وطن د آزادۍ په لاره کې د عملي جهاد ترڅنګ د ژبې او قلم د جهاد ویاړ هم لرئ، چې بدله به یې د الله په نزد ډېره اوچته وي.

خو د یو شي یادونه زه هم د ځان لپاره او هم ستاسو لپاره ضروري ګڼم، هغه دا چې زموږ او ستاسو دا قربانۍ به هله ښه ثمره راوړي چې په دې سپېڅلي عبادت (جهاد) کې مو نیت خالص د الله تعالی لپاره وي، او د عبادت په نیت په دې لاره کې برخه واخلو او دا په پام کې ولرو چې موږ به الله تعالی ته د زرې- زرې حساب ورکوونکي هم یو، څومره بدله چې له الله غواړو، همداسې مو امتحان هم سخت دی.

اسلامي امارت د خپلې ژمنې له مخې د توافقنامې د عملي کولو پوره کوشش کړی دی، حالات یې کنټرول ساتلي دي، له توافقنامې وروسته په بهرنیانو باندې یو برید هم نه دی شوی، چې دا زمونږ په خپل عهد باندې د وفاء دلیل اوثبوت دی، مګر د مقابل لوري تخلفات او غلطۍ په شمېرکې له زرو څخه اوړي، همدا راز د امریکا نوي حکومت په لوی لاس د بې اعتمادۍ فضاء جوړه کړې ده، که چېرته د توافقنامې د عملي کولو باور غواړي بیا دې د تړون په ارزونه کې نه هېروي چې د نقض په صورت کې به عواقب ډېر ورته خراب وي، بیا هم مونږ په دنیاوالو غږکوو چې په لوی لاس دې

جنګ ته لاره نه هواريږي او جوړ شوی اعتماد دې په بې اعتمادۍ نه بدليږي.

په اخرکې يوځل بيا د فرهنګي کمېسيون مسئولينو او ټولوکارکوونکو ته د دې سمينار د رابللو او ټولو مطبوعاتي هڅوکې د بريا دعاء کوم، تاسو او په دې سمينارکې ټولوګډونوالو ورونړو ته د دې وياړمنې ورځې چې د هيواد د اشغال د خاتمې تاريخي تړون پکې لاسليک شوی؛ او تاسو يې نن د لومړۍ کليزي په پار سره را غونډ شوي ياست، لمانځنه يې کوئ؛ مبارکي وايم. الله پاک دې دا توافقنامه زموږ او ستاسو د ځورېدلي ولس د سوکالۍ پيلامه او د هيواد د تلپاتي استقلال وسيله وګرځوي.

ستاسو علمي او فرهنګي هڅې د ډېرې ستاينې وړ دي، الله تعالی دې په خپل دربارکې مقبولي وګرځوي. آمين

والسلام

د افغانستان د اسلامي امارت مرستيال

خليفه سراج الدين حقاني

❊ ❊ ❊

## د اشغال د خاتمې تړون د لومړۍ کلیزې په مناسبت
## د اسلامي امارت د سیاسي مرستیال محترم ملا برادر اخند پیغام

الحمد لله الذي صدقنا وعده، ونصر عبده، وأعز جنده، وهزم الاحزاب وحده والصلاة السلام على من لا نبي بعده اما بعد:

دافغانستان مسلمان ولس او د هیواد د برحقې دفاع او خپلواکۍ دلارې ټولو مجاهدینو ورونو ته!

السلام علیکم ورحمت الله وبرکاته!

خوښ یم چې نن دهیواد د یوې تاریخي ورځې په مناسبت له تاسو سره خپل نظر شریک کړم، زموږ ویاړلی هیواد او باشهامته مجاهدولس په خپل جهادي تاریخ کې ډېرې ویاړمنې ورځې لري. دحوت لسمه نیټه د افغان ولس هغه تاریخي او ویاړمنه ورځ ده چې پر افغانستان د امریکایي اشغال د پا ی ته رسیدو تاریخي توافقنامه پکې لاسلیک شوه. که د دې ورځې همدا تاریخي توافقنامه په بشپړ ډول عملي شي په افغانستان کې به د ولس د ارمانونو سره سم اسلامي نظام قایم، بې ثباتي ختمه او یوه تل پاته سوله به تامین شي.

د افغانستان اسلامي امارت لکه څرنګه چې د توافقنامې د لاسلیکولو پرمهال د هغې د محتویاتو دعملي کولو تعهدکړی، تر پایه خپل تعهد ته ژمن او له مقابل لوري هم د ورته عمل غوښتنه لري. د دوحې د توافقنامې پراساس د افغانستان اسلامي امارت په خپلو عملیاتوکې د پام وړ کموالی راوستی، پر لویو استخباراتي او پوځي مراکزو عملیات نه دي ترسره شوي، ولایاتو ته سقوط نه دی ورکول شوی، د ولایاتو او ولسوالیو پرمرکزونو بریدونه نه دي

شوي او همدا ټولو ته واضح او څرګنده ده، البته په دې اړه مقابل لوري خپل مسؤلیت پوره نه دی اداء کړی.

اوس هم بمبار، ډرون حملې، چاپې او تهاجمي عملیات چې دتوافقنامې په اساس منع دي د مقابل لوري لخوا ترسره کیږي، چې په دې سره دملکي تلفاتوکچه لوړیږي. بل داچې په دې وروستیوکې ځینوکړیو د داسې پېښو په ځانګړي ډول د ملکي خلکو هدف ګرځولو ته مخه کړې ده، چې ګټې یې له پردیو سره تړلې دي، دوی غواړي په دې توګه وضعیت کړکېچن وښيي او په دې سره د هیواد داشغال او جګړې د دوام لپاره بهانې جوړې کړي.

دا توافقنامه چې د قطر هیواد په دوحه کې د ملګرو ملتونو داستازو په شمول د زیات شمېر نړیوالو ناظرینو په مخ کې لاسلیک شوه، دعملي کیدو په اړه یې همدانړیوال ناظرین هم یو ډول مکلیفیت لري چې باید مقابل لوری خپلو مسؤلیتونو او تعهداتو ته متوجه کړي.

دنوموړي توافقنامې تر لاسلیک وروسته په افغانستان کې داسلامي نظام تر سیوري لاندې د ثبات او سولې ټینګیدو لپاره ښه فرصت رامنځته شوی، که د توافقنامې دواړه لوري په خپل وخت له دې فرصت څخه استفاده وکړي، تمه ده چې مثبتې پایلې به ولري.

په پای کې له الله تعالی څخه سوال کوم چې هیواد مو نور د یو اسلامي حاکمیت تر سیوري لاندې د امن، ثبات او سوکالۍ جوګه وګرځوي، الله تعالی دې د جهاد د ویاړمنې لارې د شهیدانو ارواح خوشحال او مجاهدین په خپلو ټولو جهادي چارو کې بریالي ولري.

والسلام علیکم ورحمت الله وبرکاته!

ملا عبدالغني برادر-

د اسلامي امارت سیاسي مرستیال او سیاسي دفتر رئیس

## د دوحې تړون
## او په اسلام کې له کافرانو سره نورې توافقنامې

دکتور محمد حسین- لیکوال او دیني عالم

پوره یوکال وړاندې په همدې نېټه د قطر پلازمېنه دوحه کې د افغانستان د اسلامي امارت او امریکا تر منځ د لسګونو هیوادونو او نړیوالو سازمانونو د استازو په حضورکې یو تاریخي تړون لاسلیک شو، چې له مخې به یې د افغانستان اشغال پای ته رسیږي او د یو ځواکمن، خپلواک او اسلامي حکومت جوړېدو ته به لاره هواریږي. په همدې مناسبت مو د اسلام په تاریخ کې ځینې هغه تړونونه را اخیستي چې په بېلابېلو وختونوکې د اسلامي واکمنانو اوکافرانو ترمنځ شوي دي.

اسلام د انسانیت لپاره د امن، پرمختګ او سوکالۍ دین دی، اسلام د ټولې نړۍ لپاره رحمت دی، اسلام د یوې بشپړې ډاډمنې او پر امنه ټولنې په رامنځته کېدو باور لري، داسې ټولنه چې هر وګړي ته یې خپل حقونه ورسیږي. که یو څوک په ځلانده اسلامي تاریخ نظر وکړي، ورته څرګنده به شي، چې اسلامي تاریخ کې چې څومره وسله والې مبارزې او جهادونه شوي، هغه دکافر له ذات سره د دښمنۍ په اساس نه دي شوي، بلکې دکافر د یرغل په دفاع او یا د اسلامي دعوت پر وړاندې د هغوی له لوري جوړو شویو خنډونو له منځه وړلو لپاره شوي دي.

له همدې امله چې اسلام پر جګړه ټینګار نه کوي، دکافرانو له لوري سولې او خبرو ته د راګرځېدو په صورت کې د الله تعالی حکم دی، چې

تاسې هم د خبرو لار غوره کړئ: وَإِنْ جَنَحُوا لِلسَّلْمِ فَاجْنَحْ لَهَا وَتَوَكَّلْ عَلَى اللَّهِ إِنَّهُ هُوَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ. [الانفال]...

د اسلام په تاریخ کې کافرانو سره ډېر تړونونه شوي دي، چې د اسلامي امت لپاره په دې لاره کې د لارې مشالونه دي او د هغو په رڼا کې خپلو موخو اهدافو ته رسیدلی شي. همدا تړونونه دي، چې موږ ته د مذاکراتو او خبرو پر مهال د وصل او فصل نقطې راښيي.

د اسلام په پیل کې چې کله د زور له لارې کافران د اسلامي دعوت په مخنیوي کې پاتې راغلل، هڅه يې وکړه، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم سره د خبرو له لارې ستونزه حل کړي او په همدې موخه يې څو ځله ابو طالب ته جرګې ورولیږلې، په وروستي ځل چې ابو طالب ته ورغلل د پرېکنده او غوڅ ځواب غوښتنه يې وکړه، او ورته کړل يې: موږ څو ځله درنه وغوښتل چې د وراره دکارونو مخه دې ونېسه، خوتا سر پسې ونه ګرځاوه، اوس موږ د الله پاک په نامه قسم کوو چې نور صبر نشوکولی، هغه به زموږ پلرونه کنځي، په عقل اوپوهې پورې به يې خاندي، په خدایانو به مو ملنډې وهي او موږ به ورته همداسې رنې ګورو، یا دې د وراره لاس ونېسه اویا اړ یو چې داسې خونړۍ جګړه وکړو چې یو لوری پکې له منځه ولاړ شي.

ابو طالب اړ شو، رسول الله صلی الله علیه وسلم يې را وغوښت او ورته يې وويل: «وراره! قام دې راغلی و، داسې خبرې يې راته وکړې، اوس نو زما او د ځان غم وخوره، داسې دروند پیټی مې پراوږو مه را بړده چې زه يې نه شم وړلای)).

رسول الله صلی الله علیه وسلم پوه شو چې تره يې له ملاتړه ستړی دی او نور نه غواړي، چې ملاتړ يې وکړي. په ډېره ډاډمنه لهجه يې ورته وويل: « کاکا جانه! په الله قسم، د اسلام دښمنان مې که په ښي لاس کې لمر اوکیڼ

کې سپوږمۍ راکيږدي (ټوله دنيا راکړي) او په بدل کې يې د دې سترکار پرېښودلو غوښتنه رانه وکړي، زه به تر هغه داکار پرېنږدم، چې يا اسلام ځواکمن شي او يا مې په دې لارکې سر لاړ شي. » له دې خبرو سره رسول الله صلی الله عليه وسلم په ژړا او اوښلنو سترګو روان شو. ابوطالب پسې غږ کړل: «وراره! ورځه! څه دې چې زړه غواړي هغه وايه، په الله قسم يوازې دې نه پرېږدم».

خوکله چې د زور له لارې د دعوت د مخنيوي هڅو مثبته پايله ورنه کړه، د دوی يو مشر عتبه بن ربيعه هڅه وکړه، چې د ځينو دنيوي امتيازاتو په بدل کې رسول الله صلی الله عليه وسلم او مسلمانان له اسلامي دعوت څخه راوګرځوي. عتبه د مشرکانو په استازيتوب رسول الله صلی الله عليه وسلم ته ورغی او لاندې وړانديزونه يې ورته وکړل:

۱: که مال غواړې، دومره مال به درکړو چې مکه کې به تر تا بل شتمن نه وي.

۲: که عزت غواړې، خپل مشر به دې وټاکو.

۳: که پاچاهي غواړې، پاچا به دې کړو.

۴: که ښځه غواړې، تر ټولو ښايښته نجلۍ به درته په نکاح کړو.

۵: اوکه دا خبرې د ناروغي له امله کوې، درملنه به دې وکړو.

رسول الله صلی الله عليه وسلم دا ټول وړانديزونه له دې امله رد کړل چې د ده د بعثت له موخې او اسلامي ارزښتونو سره په ټکرکې وو.

### لومړی؛ له هجرت وروسته يهودانو سره تړون:

هغه مهال چې رسول الله صلی الله عليه وسلم او مسلمانانو مدينې منورې ته هجرت کاوه، د مکې مکرمې په پرتله مدينه منوره کې سياسي

وضعيت يو څه پيچلی و، ځکه چې مکه مکرمه کې يوازې له مشرکانو سره تعامل و؛ خو مدينه منوره کې د يهودانو په شمول ګڼ قومونه اوسېدل، چې هر يوه يې بېلابيلې عقيدې، معتقدات او ارزښتونه درلودل، رسول الله صلی الله عليه وسلم له دغه وضعيت سره په ډېر تدبير چلن وکړ او په يو وخت کې يې په ځو محاذونوکې له ښکېلتيا ډډه وکړه، له يهودانو سره يې يو داسې تړون لاسليک کړ، چې هغوی به خپلو ديني کارونوکې ازاد وي، مال به يې خوندي وي، پر هغوی يې هم ځيني شرطونه کېښوول او د هغوی له لوري يې پرځان هم ځيني شرطونه ومنل.

## دوهم؛ د حديبې تاريخي تړون:

رسو ل الله صلی الله عليه وسلم خوب وليد، چې د مسلمانانو په ملتيا کعبې مبارکې ته ننوځي، طواف وکړي او نور ارکان پرځای کړي، دغه خوب يې مسلمانانو ته ووايه او زيری يې ورکړ، چې عمرې لپاره به کعبې ته ځي، هماغه و چې د هجرت په شپږم کال د نږدې پنځلس سوه صحابه کرامو په ملتيا د عمرې په نيت مکې مکرمې ته روان شو. که څه هم رسول الله صلی الله عليه وسلم يوازې د عمرې اراده درلوده؛ خو قريشو يې مخه ونيوله. رسول الله صلی الله عليه وسلم د دې ستونزې د هوارې لپاره حضرت عثمان رضي الله عنه د خپل استازي په توګه مکې مکرمې ته وليږه. او دغه راز د مشرکانو له لوري هم ځو استازي راغلل او لاړل.

په پای کې (سهيل بن عمرو) د قريشو په استازولۍ راغی، د پيغمبرصلی الله عليه وسلم سترګې چې پرې ولګيدې نو وې فرمايل: (د دغه سړي را ليږل د دې نښه ده چې قريش سوله غواړي) له نوموړي سره تر خبرو اترو وروسته پيغمبر صلی الله عليه وسلم د تړون ليکلو لپاره حضرت علي رضی الله عنه راوغوښت.

له دې امله چې دغه تړون د مسلمانانو لپاره ډېر ارزښتناک و، رسول الله صلی الله علیه وسلم په ځینو داسې برخوکې چې اهدافو او ارزښتونو ته پکې زیان نه رسیدی، یو لړ تنزلات هم وکړل. د بیلګې په توګه: حضرت علي رضي الله عنه د توافقنامې په پیل کې (بسم الله الرحمن الرحیم) ولیکل. سهیل وویل: رحمن او رحیم؛ خو موږ نه پېژنو، د دې پرځای ((بأسمک اللهم)) ولیکه! د حضرت علي رضي الله تعالی عنه له انکار سره سره، رسول الله صلی الله علیه وسلم وویل: سمه ده ((بسمک اللهم)) ولیکه!

حضرت علي رضي الله عنه د رسول الله صلی الله عیه وسلم په لارښوونه د تړون سرلیک داسې ولیکه: «دا تړون د الله پاک د رسول محمد (صلی الله علیه وسلم) او سهیل بن عمرو ترمنځ لاسلیک شوی». سهیل وویل: « په الله تعالی قسم که موږ د پیغمبر په توګه منلی؛ نو بیا مو له کعبې نه منع کولې؟ او ولې به مو جګړه درسره کوله. بلکې تړون کې به یوازې خپل نوم او د پلار نوم لیکئ». رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وویل: « زه د الله پاک رسول او استازی یم؛ خو دا جلا خبره ده چې تاسو مې نه منئ» بیا یې حضرت علي رضي الله عنه ته وویل: « محمد بن عبدالله ولیکه او د (رسول الله) توری ړنګ کړه! » حضرت علي رضي الله عنه وویل: زه یې نه شم ړنګولای. پیغمبر صلی الله علیه وسلم په خپله د (رسول الله) توری ړنګ کړ.

## د حدیبې تړون بندونه:

۱: قریش به راتلونکی (د هجرت اووم) کال رسول الله صلی الله علیه وسلم او مسلمانانو ته درې ورځې حرم ته د ورتګ اجازه ورکوي.

۲: له قریشو چې څوک مدینې منورې ته لاړ شي، که څه هم اسلام یې منلی وي، مسلمانان به یې بېرته قریشو ته سپاري، خوکه کوم مسلمان مکې ته لاړ شي، مکه وال یې په سپارلو مکلف نه دي.

۳ د تړون له مخې به د مسلمانانو او مشرکانو تر منځ لس کاله اوربند وي.

۴: هر څوک کولی شي چې د مسلمانانو او یا قریشو په پناکې ژوند وکړي او تړونونه ورسره وکړي.

که څه هم په ښکاره د تړون بندونه تر ډېره د مشرکانو په ګټه معلومېدل او په مسلمانانوکې يې يو لړ اندېښنې راوپارولې، تر دې چې حضرت عمر رضي الله عنه ابوبکر صديق رضي الله عنه ته وويل: رسول الله صلی الله عليه وسلم نه و ويلي چې دکعبې طواف به کوو؟

ابوبکرصديق رضي الله عنه: هو، ويلي يې و. خو ايا سږکال يې ښوولی و؟ عمر رضي الله عنه: نه! ابوبکر صديق رضي الله عنه: يو وخت به ورشې او طواف به يې هم وکړې.

خو همدا تړون االله تعالی ستره بریا او فتحه وبلله او په هکله کې دغه مبارک ايتونه نازل شول:

إِنَّا فَتَحْنَا لَكَ فَتْحًا مُّبِينًا ۙ لِّيَغْفِرَ لَكَ اللَّهُ مَا تَقَدَّمَ مِن ذَنبِكَ وَمَا تَأَخَّرَ وَيُتِمَّ نِعْمَتَهُ عَلَيْكَ وَيَهْدِيَكَ صِرَاطًا مُّسْتَقِيمًا ۙ وَيَنصُرَكَ اللَّهُ نَصْرًا عَزِيزًا [الفتح۳].

ژباړه: موږ ستر بری درکړ. ترڅو الله پاک ستا تېرې او راتلونکې ګناوې ټولې درته وبښي او لورينې دربانديې بشپړې کړي اوتاته نېغه لاره در وښيي او الله پاک دې په ښه ډول مرسته وکړي.

## د حديبې تړون ګټې:

د حديبې تړون لومړۍ ګټه دا وه، چې قريشو مسلمانان د خپل لوی سيال او داسې ځواکمن سياسي او نظامي جـهت په تـوګه ومنل چې تړونونه ورسره کيږي.

دوهمه ګټه یې داوه چې مسلمانانو له هغو سترو جګړو وروسته د آرام ساه واخیسته چې پیل اوپای یې نه معلومیده او د اوربند موده کې یې د اسلام بلنه د سولې او امن په ډاډمنه فضا کې په خلاص مټ نورو خلکو ته ورسوله.

دریمه ګټه دا وه چې د همدې تړون له برکته مسلمانانو او مشرکانو دواړو ته د دې موکه په لاس ورغله چې له یو بل سره کښیني، له نژدې سره وویني، د یوبل خبرې واوري او مشرکان هم د اسلام ښکیڼې په خپلو سترګو ووینې.

په دې هکله امام ابن شهاب زهري رحمه الله وایي: ((د اسلام تاریخ کې د حدیبې تړون په څېر بله ستره بریا راته معلومه نه ده، تر دې مخکې د مسلمانانو او مشرکانو ترمنځ جنګونه وو؛ خو د حدیبې له تړون وروسته خلک ډاډمن شول او موکه په لاس ورغله چې نظرونه سره شریک کړي، له نژدې سره ووینې او وغږیږي؛ نوځوک چې په ښه اوبد ډېرکم پوهېدل او د اسلام ښېګڼې ور معلومې شوې، سمدلاسه یې ایمان راووړ.

پر دې سربیره رسول الله صلی الله علیه وسلم له بېلا بېلو قومونو سره معاهدې او تړونونه کړي دي، چې ځینې یې په لاندې ډول دي:

١: د نجران له نصاراوو سره.

٢: بني ضمره قبیلې سره.

٣: بني مدلج سره.

## دریم؛ له رسول الله صلی الله علیه وسلم وروسته تړونونه

### ١: المعاهدة العمرية

د دوهم خلیفه امیرالمؤمنین حضرت عمر رضي الله عنه په خلافت کې مسلمانانو ډېر زیات فتوحات وکړل او د اسلامي دعوت سیمه پراخه شوه. د هجرت په پنځلسم کال چې کله مسلمانانو بیت المقدس فتحه کړ، امیرالمؤمنین

حضرت عمر رضي الله عنه د ایلیاء (بیت المقدس) اوسېدونکو سره معاهده وکړه، چې د هغوی مال، سر او مذهبي ودانۍ به محفوظې وي او دغه راز یې ځینې شرطونه په هغوی هم وضع کړل.

## ۲: سوډانیانو سره ترون

د دریم خلیه حضرت عثمان رضي الله تعالی عنه د خلافت پرمهال د مصر والي حضرت عبدالله بن سعد رضي الله عنه له لوري د سوډانیانو سره تر سختې جګړې وروسته هغوی د سولې غوښتنه وکړه، حضرت عبدالله بن سعد یې غوښتنه ومنله او ترمنځ یې ترون وشو، چې نږدې شپږ سوه کاله دغه ترون ته دواړه لوري ژمن پاتې شول.

## ۳: قبرصیانو سره ترون

په ۲۸ هجري کال کې مسلمانانو د قبرص له اوسېدونکو سره یو ترون لاسلیک کړ، چې له مخې به یې هغوی جزیه نه ورکوي او نه به هم ذمیان ګڼل کیږي؛ خو په کلني ډول به (۷۲۰۰) دینار خراج مسلمانانو ته ورکوي. څوکاله وروسته قبرصیانو دغه ترون مات کړ او له رومیانو سره یوځای یې د مسلمانانو پرضد جګړه پیل کړه، چې په بدل کې یې حضرت معاویه رضي الله عنه پرکال ۳۳ هجري پر قبرص حمله وکړه او فتحه یې کړ.

دغه راز په اموي او عباسي دولتونو او ورپسې د صلاح الدین ایوبي په زمانه کې او تر هغه وروسته د عثماني خلافت پر مهال د مسلمانانو اوکافرانو ترمنځ ډېر ترونونه شوي دي.

خوکه یو څوک په دقیق نظر دغه ترونونه وګوري دوه عمده نکتې مخې ته راځي.

لومړۍ: د دغو ترونونو پرمهال اسلامي واکمنانو د دیني ارزښتونو او معتقداتو په برخه کې هیڅ راز تنازل او بې غوري نه ده کړې.

دوهمه: مسلمانان په بشپړه توګه تړونونو او تعهداتو ته ژمن پاتې شوي دي، چې همدا په نړيوالو اړيکو او ډيپلوماسۍ کې د مسلمانانو د بريا ستر لامل دی.

په تاريخ کې چې د مسلمانانو اوکافرانو تر منځ څومره تړونونه نقض شوي نو پيل يې دکافرانو له لوري ترسره شوی دی. اوس چې د اسلامي امارت او امريکا ترمنځ د دوحې له تړون څخه يوکال تېرېږي، اسلامي امارت همدې توافقنامې ته ژمن پاته شوی، خو مقابل جهت مکررې سرغړونې ترسره کړې دي. امريکا بايد د دوحې تړون ته بشپړه ژمنتيا وښيي او ټولې مادې يې د مهال ويش سره سمې عملي کړي. د دوحې تړون تعميل د افغانستان او امريکا دواړو په خير دی، هيله من يو چې جانبين همدا تړون نقض ته پرېنږدي او مکمل يې عملي کړي.

والسلام په همدې هيله

* * *

## د تړون ساتنه راته ولې مهمه ده؟

مفتي حسن زوی- لیکوال او دیني عالم

دا زموږ ایمان او عقیده ده چې د جهاد لپاره د وسایلو درلودل، ډېرول، قوي کول او د دښمن په مقابل کې نورې جنګي تیاریانې زموږ شرعي مکلفیت دی؛ خو زموږ تاریخ ګواه دی چې موږ د وسایلو پر مټ فتحې ندې ترلاسه کړې اوکله مو چې پر خپلو تدابیرو او وسایلو اتکا کړېده د شکست سره مخامخ شوي یو.

مسلمانانو تل د الله په نصرت فتحې کړیدي او د الله تعالی نصرت هغه وخت وي چې د الله تعالی د شریعت اتباع وي؛ د شریعت له اتباع پرته د الله نصرت او د دښمن په مقابل کې د مسلمان کامیابي ناشوني ده.

د شرعي اصولو اتباع که په جنګ کې شویده هم مسلمانان کامیاب شویدي اوکه په سوله کې شرعي اصولو ته مسلمانان ژمن پاتې شوي دي بیا یې هم کامیابي په برخه شوې ده، چې د حدیبې سوله او سولې ته د مسلمانانو ژمنتیا یې ډېر ستر ثبوت دی.

په دې سولې او د سولې په شرطونو عام مسلمانان خوښ نه وو خو چې د رامنځ ته کېدو نه پس یې پرې عمل وکړ نو څومره ښه اثار پرې مرتب شول، رسول الله صلی الله علیه وسلم له عمرې اداء کولو پرته بله هیڅ اراده نه درلوده؛ د مسلمانانو شمېر ۱۵ سوه ته رسېدلو، خو په وسلو داسې نه وو سمبال لکه جنګیالي چې جنګ ته ځي بلکې همدومره وسلې ورسره وې، لکه مسافر یې چې د ځان د ساتنې په هدف له ځانه سره وړي خو قریش چې

خبر شوي وو نو لښکر يې تيار اوکلکه اراده يې وکړه چې مسلمانان به عمرې ته نه پرېږدو او د مقدمة الجيش په حيث يې د خالد بن وليد (چې لا مسلمان شوی نه و) په مشرۍ کې يوه دوه سوه کسيزه ډله رالېږلې وه؛ رسول الله صلی الله عليه وسلم د قريشو د ارادې نه خبر شو او له دې هم خبر شو چې د خالد بن وليد په مشرۍ کې دا ډله غميم مقام ته را رسېدلې ده، نو رسول الله صلی الله عليه وسلم هغه لار پرېښوده او له بلې لارې يې حديبې ته ځان ورساوه.

ياني قريش پدې پوه وو چې د جنګ نه بلکې يواځې دعمرې په اراده مسلمانان راغلي دي خو بيا يې هم ډېر تکبر ښکاره کړ؛ د مسلمانانو پرضد يې لښکر تيارکړ او عمرې ته د مسلمانانو د نه پرېښودلوکلکه اراده يې وکړه؛ رسول الله صلی الله عليه وسلم له حديبې نه قريشو ته خراش بن امية خزاعي رضی الله عنه ور ولېږلو تر څو يې خبرکړي چې موږ د جنګ لپاره نه بلکې يواځې د بيت الله د زيارت لپاره راغلي يو.

قريشو د خراش رضی الله عنه اوښ ذبح او دده د وژلو اراده يې وکړه خو ترې الله تعالی وساتلو؛ بيا رسول الله صلی الله عليه وسلم عثمان رضی الله تعالی عنه ورولېږلو خو قريشو خبره ونه منله.

دا ټولې د قريشو د کبر او ظلم خبرې وې خو رسول الله صلی الله عليه وسلم وزغملې او په مقابل کې يې کوم جدي عکس العمل ښکاره نکړ.

بيا چې کله د سولې د تړون خبره راغله نوکوم شرطونه چې هغوی وړاندې کړل هغه ټول هم په ښکاره د منلو نه وو خو رسول الله صلی الله عليه وسلم ومنل.

د رسول الله صلی الله عليه وسلم او قريشو ترمنځ چې کله د سولې او د سولې د شرطونو په هکله اتفاق رامنځته او حضرت علی رضی الله تعالی عنه

ته یې د دې سولې د ترون د لیکلو حکم وکړ نو د رسول الله صلی الله علیه وسلم د حکم په اساس یې په سرکې بسم الله الرحمن الرحیم ولیکله.

دعربو زوړ رواج دا و چې د خط په سرکې به یې باسمک اللهم لیکلو نو د قریشو نماینده سهیل بن عمرو وویل زه بسم الله الرحمن الرحیم نه پیژنم دزوړ رسم او رواج له مخې باسمک اللهم ولیکه! رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل همدا ولیکه!

بیا یې وفرمایل: ولیکه! (هذا ما قاضی علیه محمد رسول الله)

دا هغه عهدنامه ده چې پرې محمد د الله رسول سوله کړې. سهیل وویل که ته موږ د الله رسول ګڼلای نه به مو د بیت الله نه منع کړی وای او نه به مو درسره جنګ کړی وای؛ د محمد رسول الله پرځای محمد بن عبدالله ولیکه. رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: سره له دې چې تاسې زما تکذیب کوئ، په الله مې دې قسم وي زه د الله رسول یم.

بیا یې علی رضی الله تعالی عنه ته وفرمایل: دا لرې او ددوی دغوښتنې سره سم مې نوم ولیکه! علي رضی الله عنه ته د (رسول الله) الفاظ ورانول ډېرګران و نو یې د ورانولو معذرت وړاندې کړ؛ رسول الله صلی الله علیه وسلم په خپل لاس مبارک دا لفظ وران کړ او پرځای یې علي رضی الله تعالی عنه ته د محمد بن عبدالله لیکلو حکم وکړ.

په سوله کې قریشو دا د ظلم نه ډک شرط شامل کړ چې محمد (صلی الله علیه وسلم) او ملګري به یې اوس د عمرې ادا کولو پرته بېرته ځي؛ راتلونکي کال ته به دعمرې ادا کولو اوپه مکې کې یواځې ۳ ورځې د پاتې کېدو اجازه ولري؛ مسلمانانو سره به له تورو پرته نورې وسلې نه وي؛ توري به هم په تېکوکې وي.

۱۰ کلونه به جنګ بندي وي؛ د بادار او ولي د اجازې پرته که د قریشو کوم تن مدینې ته ولاړ شي بېرته به راوستل کېږي خوکه له مدینې نه مکې ته څوک راغلو بېرته به مدینې ته نه بوتلل کېږي.

خط لا نه و پوره شوی چې د سهیل زوی ابو جندل (چې د مخه په مکه کې مسلمان شوی او د قریشو له لورې ورته سخت تکلیفونه رسېدل) په زنځیرونوکې تړلی د رسول الله صلی الله علیه وسلم حضورته حاضر شو؛ سهیل وویل دا ړومبنی هغه شخص دی چې د تړون له مخې باید موږ ته راوسپارل شي؛ رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: لا خو د سولې خط ندی پوره شوی (یانې د خط پوره کېدو او امضاء نه پس پرې باید عمل پیل شي) خو سهیل ونه منله؛ ابو جندل سهیل ته په داسې حال کې ور وسپارل شو چې د حسرت او افسوس نه په ډک انداز یې مسلمانانو ته مخ راواړاوه او ویې ویل: مسلمانانو! زه کافرانو ته ور سپارل کېږم؟!

رسول الله صلی الله علیه وسلم چې دابو جندل خبره واورېدله ور ته یې وفرمایل:

(یا ابا جندل اصبر واحتسب فانا لا نغدر وان الله جاعل لک فرجا ومخرجا)

ابو جندله صبرکوه او د اجر امېد لره؛ موږ وعده خلافي نه کوو او الله تعالی به خامخا تا ته د نجات او خلاصون لار برابره کړي.

کفارو ته د ابو جندل سپارل مسلمانان سخت ودردول عمر فاروق رضی الله تعالی عنه خو بیخي احساساتي شو او رسول الله صلی الله علیه وسلم او ابو بکر صدیق رضی الله تعالی عنه په حضورکې یې خپل احساسات ښکاره هم کړل.

په صحیح مسلم شریف کې د سیدنا انس رضی الله تعالی عنه نه روایت دی چې صحابه وو عرض وکړ: یا رسول الله پدې شرط څرنګه سوله وشوه

چې زموږ نه څوک ورشي هغوی به يې موږ ته نه راسپاري او چې دهغوی نه څوک راشي موږ به يې ورسپارو؟!

رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل څوک چې زموږ نه ولاړ زموږ ورته اړتیا نشته؛ هغه به الله تعالی د خپل رحمت نه لرې کړی وي او له هغوی نه چې څوک اسلام قبول او موږ ته را شي نو د معاهدې له مخې به يې ورسپارو خو دا دخفګان خبره نده، الله تعالی به ورته ژر د نجات لار راوباسي.

لنډه دا چې د پورتنو شرطونو سره سم تړون رامنځته او جانبینو امضاء کړ.

د سولې تړون د مکمل کېدو نه پس رسول الله صلی الله علیه وسلم صحابه کرامو رضی الله تعالی عنهم اجمعین ته د څاروو د ذبح کولو او سرونو خریلو حکم وکړ خوصحابه کرام ددې شرطونو له امله دومره غمجن اودردمن وو چې د حکم تکمیل يې نه شوکولای؛ رسول الله صلی الله علیه وسلم ۳ کرته حکم وکړ خو څوک پورته نه شو.

رسول الله صلی الله علیه وسلم خپلې بی بی ام سلمة رضی الله تعالی عنها ته ورغلو او د یو شکایت کونکي په څېر يې ورته دا خبره وکړه؛ هغې عرض وکړ: یا رسول الله خلک ډېر غمجن دي ځکه يې د حکم تعمیل ونه شوکړای، تاسې چاته څه مه وایئ؛ بېرون ووځئ قرباني او سرکل کړئ دوی به مو پخپله اتباع وکړي. همداسې و هم شوه چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم د قربانۍ کولو سره ټولو صحابه وو د خپلو څاروو ذبح پیل کړه.

په حدیبې کې دکابو دوه اوونیو قیام نه پس رسول الله صلی الله علیه وسلم د حدیبې نه مدینې منورې ته روان شو؛ په لارکې سورة فتح نازل شو؛ رسول الله صلی الله علیه وسلم خپل اصحاب راجمع او انا فتحنا لک فتحامبینا يې د سورة تر آخره تلاوت کړ.

صحابه کرامو چې دا سوله یې لکه خپل شکست داسې بلله په ډېر تعجب یې وپوښتل: یا رسول الله آیا دا فتح ده؟! رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: قسم مې دې وي په هغه ذات چې زما روح یې په قبضه کې دی بې له شکه چې دا عظیمه فتح ده.

هو! د حدیبې سوله په ښکاره مسلمانانو ته خپل ذلت ښکارېده خو په حقیقت کې دا ډېره ستره فتح وه؛ الله تعالی د حدیبې سوله فتح مبین او د سکون او اطمینان موجب وګڼله؛ په عربۍ کې دکوم بند شي خلاصول د فتح معنی لري؛ دعربو د مخالفت له امله د اسلام د دعوت او د احکامو د تبلیغ دروازه بنده وه؛ د دې تړون په برکت د دعوت لار خلاصه اوعالم ته د اسلام د پېغام رسولو موکه ترلاسه شوه؛ رسول الله صلی الله علیه وسلم د نړۍ د ستر طاقت روم بادشاه هرقل؛ دنړۍ دوهم ستر طاقت فارس بادشاه کسرا؛ د حبشې بادشاه نجاشي؛ د مصر بادشاه مقوقس؛ د بحرین بادشاه منذربن ساوا؛ دعمان بادشاه جیفر؛ د یمامې مشر هوزه بن علي او د دمشق امیرحارث غساني په څېر د نړۍ ټولو لویو طاقتونو او مشهورو حاکمانو ته اسلام ته د را داخلېدلو لپاره خطونه ولېږل.

نورو خلکو ته د قرآنکریم اورولو؛ ورسره د خبرو او د اسلام د احکامو په هکله د بحث او مناظرې موکه ترلاسه شوه؛ اثر یې دا شو چې د بعثت له پیل نه د حدیبې تر سولې پورې دومره خلک نه وو مسلمانان شوي څومره چې د حدیبې د سولې نه تر فتح مکې پورې مسلمانان شول؛ او هغو خلکو چې خپل اسلام یې نه شو ښکاره کولای د دې سولې نه پس یې په علني ډول د اسلام احکام عملي کړل.

اسلام چې د مکارم اخلاق او محاسن اعمال معدن دی، د رسول صلی الله علیه وسلم ژمن یاران ددې ژوندی تصویر و، خو د اسلام سرسختو دښمنانو یې د بدنامولو لپاره په ټولو نیړدې سیموکې دومره تبلیغات کړي وو

چې ډېروکمو خلکو به یې په نېکو اعمالو او عالي اخلاقو یقین کولای شو خو د سولې نه پس چې نورو خلکو ته د نیږدېکت او ورسره د ډیالوګ موکه په نصیب شوه نو د صحابه کرامو نېکو اعمالو او عالي اخلاقو ډېر زیات خلک متأثره کړل؛ او ټولو ذي شعوره خلکو ته د دې حقپالونکو خلکو د تندو نور راښکاره شو؛ ګڼ خلک یې ملګري شول.

نو د حدیبیې سوله خو عامو مسلمانانو خپل شکست ګاڼه خو په حقیقت کې ډېره ستره فتح وه. زموږ لپاره ډېره اړینه ده چې ځمکنې حقایق له پامه ونه غورځوو؛ زموږ جنګي وسایل، مادي ځواک، عسکري قوت د امریکا او د امریکا د سترو اتحادیانو سره د پرتلې وړ ندی؛ بس دا خو د الله تعالی لوی فضل او زموږ د ځوانانو بې دریغه قربانۍ وې چې دښمن مو شکست وخوړ او زموږ دغوښتنو سره سم یو داسې تړون ته تیار شو چې دوستان یې په اړه هیڅ تشویش نه لري او زموږ دښمنان په هغې کې هیڅ کومه داسې نقیصه اوکمی نه شي په ګوته کولای چې موږ پرې بدنام کړي.

بلکې ملت شاهد دی چې ټول لاسپوڅي د دې تړون سره سخت مخالف وو اول یې د مخنیوي هڅې وکړې اوبیا یې پدې تړون کې د منل شویو مادو په تنفیذکې د موانعو د ایجادولو سخت زیات کوښښونه وکړل چې الله تعالی سخت ناکام کړل خو شکایتونه یې تر ننه روان دي او وایې چې دا تړون طالبانو ته له امتیاز ورکولو پرته هیڅ نه لري.

بې له شکه چې دا زموږ فتح عظیمه او فتح مبینه ده؛ په هغو هېوادونوکې چې زموږ نوم اخیستل به یکې ستر جرم و اوس له هماغو هېوادونو نه موږ ته دعوتونه راکول کیږي او زموږ سیاسیون ورته کامیاب سفرونه کوي؛ الله تعالی راته موکه راکړه چې نړۍ ته خپل پیغام ورسوو؛ زموږ په اړه شوي منفي او پوچ تبلیغات رد کړو؛ زموږ په اړه د نړۍ منفي فکر بدل او نړۍ پدې پوه کړو

چې خپلو عالي اهدافو ته د ژمنتیا ترڅنګ هم د نړۍ سره ښه روابط لرلای شو او هم د خپل ولس نمایندګي کولای شو.

زموږ یو، دوه، لس یا شل نه بلکې ۵ زره بندیان آزاد شول او پرون چې خلیلزاد افغانستان ته په سفر راغلی و د ۷ زره نورو بندیانو د آزادۍ خبره یې هم کړیده.

موږ باید پدې پوه شو چې د دې تړون بقا زموږ لپاره بې حده زیات ارزښت لري؛ نو په هر قیمت چې وي باید د بقا لپاره یې هڅې وکړو او مشران اوکشران ټول د داسې هر حرکت نه ځان وساتو چې دې تړون ته پرې ادنی تاوان رسېدای شي؛ الله تعالی راته ډېره ستره موکه راکړیده چې ساتنه یې یوائې دګتې خبره نه بلکې زموږ د ټولو فریضه هم ده.

❊ ❊ ❊

## د افغانستان په نړدې تاريخ کې
## د اشغال د خاتمې تړونونو ته لنډه کتنه

قاري عبدالستار سعيد
ليکوال، څېړونکی او مؤرخ

زموږ هيواد افغانستان د خپل ځانګړي ستراتيژيک اهميت له امله د تاريخ په اوږدو کې هميشه د بهرنيو يرغلونو هدف ګرځيدلی دی. که له يوې خوا د دې هيواد موقعيتي خصوصيت او مادي ثروتونو د يرغلګرو زړونه وړي، بل اړخ ته په دې خاوره د ميشت ولس ديني، جهادي او د حريت طلبۍ خاصيت بيا هميشه د سترو نيواکګرو په سترګوکې اغزی ګرځيدلی دی.

په تيرو سلوکلونوکې افغان ولس د نړۍ درې ستر زبرځواکونه او نړۍ نيوونکې امپراطورۍ د خپل ايماني عزم او ميړانې په برکت د جګړې په ډګر کې له شکست سره مخامخ کړې او هغوی يې د خپل شکست منلو د وثيقې په لاسليک اړکړې دي.

دا چې نن موږ د امريکايي اشغالګرو لخوا د اشغال د خاتمې د تړون د امضاء د لومړۍ کليزې په مناسبت راټول شوي يو. غواړم تر دې وړاندې له انګريزي استعمار او ورپسې د شوروي يرغلګرو لخوا د خپلو اشغالګرو ځواکونو د ايستلو او د اشغال د خاتمې د قرادادونو په اړه هم لنډ معلومات مجلس ته ارائه کړم، تر څو وکولای شو د حوت د لسمې تړون د تاريخ په هنداره کې وارزوو.

## د انګريزي اشغالګرو شکست او د افغانستان استقلال منل

انګريزي استعمار چې په اتلسمه او نولسمه ميلادي پیړۍ کې د خاورينې کرې تر ټولو ځواکمن نیواکګر بلل کیده او په اصطلاح د واکمنۍ په قلمرو کې يې لمر نه ډوبېده، د افغانستان له مؤمن ولس سره له اتيا کلنو زور ازموينو وروسته يې په ۱۹۱۹ ميلادي کال کې د افغانستان استقلال په رسميت وپيژاند.

افغان ولس له انګريزانو څخه استقلال د تورې په زور وګاټه. کله چې د دريم افغان ـ انګليس جنګ په پايله کې افغان مجاهدين وتوانيدل چې د پکتيا او کندهار په محاذونو کې انګريزانو ته شکست ورکړي. په خاص ډول سپهسالار نادر خان او ورور يې مارشال شاولي خان د وانه، کورمې او ټل په شمول ډېرې سيمې له انګريزانو ونيولې. انګريزان مجبور شول چې د افغان ولس د حريت غوښتنې داعيه ومني. نو ځکه يې د جنګ په ډګرکې د متارکې غوښتنه وکړه او د ښکيلو اړخونو ترمنځ د سولې مذاکرات پيل شول.

خو د مؤرخينو په قول د هغه وخت افغان حکومت لکه څومره چې په نظامي ډګرکې بريالی و، د مذاکراتو په بهيرکې ونه توانيد چې د افغان ولس ټولې غوښتنې په انګريزانو ومني. دا چې هغه وخت افغان ولس په فاتحانه موقف کې و، بالمقابل انګريز اشغالګر په لومړي نړيوال جنګ کې ځپل شوي او د پخوا په نسبت په کمزوري موقف کې ول، نو افغانستان ښه فرصت درلود چې له انګريزانو څخه پخوانۍ اشغال شوې سيمې هم بيرته ترلاسه کړي. اما د مذاکراتو په ميز انګريزانو يوازې د افغانستان استقلال تسليم کړ او په مقابل کې يې د افغان حکومت استازي په دې قانع کړل چې له نورو ټولو غوښتنو تېر شي او د ډيورنډ د کرښې بل اړخ ته ټولې نيول شوي سيمې بيرته خوشي کړي.

مشهور مؤرخ محمد ابراهیم عطايي وايي چې د امان الله خان اشتباه دا وه چې د لومړي پړاو مذاکراتو لپاره يې د علي احمد خان په نوم يوکمزوری او خپلسری ډيپلومات ټاکلی و. علي احمد خان چې د امان الله خان په حکومت کې داخله وزير و له امان الله خان سره يې خپلوي هم درلوده. د ۱۹۱۹ کال په جولای کې چې کله نوموړی له انګريزانو سره د مذكراتو لپاره راولپنډۍ ته روانيده نو د افغان حکومت لخوا ورته يو طرز العمل ترتيب شوی و تر څو د هغه په رڼا کې مذاکرات مخته يوسي. خو علي احمد خان د مذاکراتو له پيل وروسته دغه طرحه هيره کړه او په خپل سره يې له انګريزانو سره توافقات وکړل.

د علي احمد خان لخوا د شوې توافقنامې په پنځمه ماده کې راغلي وو چې د افغانستان او انګريزي هند تر منځ پوله چې پخواني امير (حبيب الله خان) منلې وه اوسنی امير (امان الله خان) يې هم مني او په کومو سيموکې چې پوله نه ده تعين شوې د يوه انګريز هيئت لخوا به تعين کيږي او د افغانستان امير به يې تسليموي.

د مؤرخ ښاغلي عطايي په وينا د دې توافقنامې ځينې مادې د افغانستان لپاره تر وخت مخکې او ډيرې تاوانې وې چې د مذاکراتو په راتلونکو پړاوونوکې يې بيا کله هم افغان لوری په جبيره کولو ونه توانيد. همدا لامل و چې کله د هيئت مشر علي احمد خان کابل ته ورسيد او امان الله خان ته يې توافقنامه ورښکاره کړه، هغه ورته دومره غوسه شو چې د ده د اعدام فيصله يې وکړه. خو دا چې علي احمد خان د امان الله خان د مور وراره و، نو د خپلې مور په سپارش يې له اعدامه تير شو خو دوه کاله يې په خپل کورکې نظر بند وساته. له دې وروسته امان الله خان خپل د بهرنيو چارو وزير محمود طرزی له انګريزانو سره د مذاکراتي پلاوي مشر وټاکه. محمود طرزي د مذاکراتو په راتلونکو پړاوونوکې ډيره هڅه وکړه چې د استقلال له خپلولو نه

علاوه نورې غوښتنې هم په مقابل اړخ ومنې خصوصا د شرق او جنوب پر خوا د افغانستان د قلمرو پراخول او د پخواني لوی افغانستان اړوند سیمې را خپلول، چې د افغان حکومت ستر ارمان وو. خو افغان مذاکراتي پلاوی ونه توانید چې د علي احمد خان لخوا شوې اشتباه جبران کړي. په دې ډول انګریزانو د افغانستان اشغال په رسمیت وپیژاند، خو هغه مهمې لاسته راوړنې چې افغان حکومت د مذاکراتو په میز ترلاسه کولای شوئ په بشپړه توګه ترلاسه نه شوې.

## د شوروي اشغالګرو شاتګ او د جنیوا توافقات

له اوس نه څلویښت کاله وړاندې د هغه وخت ستر جابر ځواک شوروي اتحاد پر افغانستان یرغل وکړ. شوروي اتحاد په افغانستان تر یرغل وړاندې د نړۍ هغه اشغالګر بلل کیده، چې له خپلې هیڅ مستعمرې څخه یې شاتګ نه و کړی. اما دا د افغان ولس د ایمان او عقیدې ځواک و چې د الله تعالی په نصرت یې د شوروي اتحاد ځواکمن پوځ له شکست سره مخامخ کړ.

له څوکلنو نظامي تجربو او زور ازموینو وروسته د شوروي اتحاد وروستی مشرګورباچوف دې نتیجې ته ورسید چې په افغانستان کې بریا ناشونې ده. نوموړي د افغانستان جګړه د شوروي اتحاد لپاره ناسور ټپ وباله او په دې ډول یې د خپلو ځواکونو د ایستلو په پلان کار پیل کړ. ګورباچوف د آبرومندانه وتلو لپاره د سیاسي حل له وړاندې پیل شوې پروسه په پوره جدیت تعقیب کړه، تر دې پورې چې د ۱۹۸۸ کال په اپریل میاشت کې د جنیوا مذاکراتو او توافق ته لاره هواره شوه. د جنیوا مذاکرات او توافقات د هغه وخت د نړیوال نظم (دوه قطبي جهان) له چوکاټ او تقسیم بندۍ سره سم ترسره شول. که څه هم د مذاکراتو د پروسې اصلي متصدي د ملګرو ملتونو سازمان وو خو د مذاکراتو اصلي او مؤثر اړخونه شوروي اتحاد او د امریکا متحده ایالات وو. دغه راز د پاکستان خارجه وزیر زین نوراني او په کابل کې د ډاکټر نجیب په

مشرۍ دکمونیست رژیم د بهرنیو چارو وزیر ډاکټر عبدالوکیل هم په کې ګډون درلود.

د تعجب او تأسف خبره دا وه چې د شورویانو په وړاندې د منازعې اصلي اړخ (د افغانستان ولس او مجاهدینو) په دې مذاکراتوکې برخه نه درلوده. په جهادي صف کې د تنظیمي اختلافونو او تشتت له امله مجاهدین نه و توانیدلي چې د نظامي بریا تر څنګ ځواکمن او متحدانه سیاسي موقف هم ترلاسه کړي. د مجاهدینو له سیاسي ضعف او غیر حاضرۍ څخه په استفاده امریکا هڅه کوله د افغانستان قضیه له شوروي اتحاد سره د نړیوالو قضایاوو په نوملړکې تضمین او د خپلو منطقوي ګټو په تناظرکې حل کړي. د جنیوا مذاکرات چې په ترڅ کې یې د شاملو څلورو اړخونو ترمنځ بیلابیل توافقات امضاء شول، شورویانو د ځان لپاره یو فرصت وباله تر څو د دوی په خبره د افغانستان له جګړې آبرومندانه شاتګ وکړي. له دې پرته یادو توافقاتو هیڅ عملي جنبه او د پام وړ نتیجه نه درلوده بلکې کاملا یوه نمایشي پروسه وه. د افغانستان لپاره د ملل متحد ځانګړی استازی دیګوکوردوویز په خپلو یاداشتونوکې لیکلي چې دغه توافقنامه په سړه او بې روحیې فضاء کې امضاء شوه. دغه وړ توافقات چې همیشه له ګرمو احساساتو او تاوده هرکلي سره مخامخ کیږي اما د جنیوا د توافق د امضاء په وخت د مجلس فضاء لکه د جنازې مراسم بې روحه او بې ځوږه وو. وروسته هم ولیدل شول چې دې توافقنامې د افغانستان د ستونزې په حل کې هیڅ رول اداء نه کړ.

### دکب پر لسمه د امریکایي اشغال د خاتمې توافق نامه

د ۱۳۹۸ لمریزکال د حوت په لسمه د قطر په دوحه کې د اسلامي امارت د سیاسي استازو او د امریکا د متحده ایالاتو د نمایندګانو تر منځ د اشغال د خاتمې تړون امضاء شو. لکه څنګه چې تمه ده که د افغانستان اشغال د دې تړون سره سم پای ته ورسیږي او زموږ ولس د خپلواک اسلامي نظام څښتن

شي نو شک نشته چې د حوت د لسمې توافق به زموږ په تاریخ کې په ډیرو درنوکانو وتلل شي.

د امریکایي اشغال د خاتمې په مقصد ترسره شوی دغه توافق ځکه په خپل ډول کې بې ساری دی چې له مخې یې زموږ مجاهد ولس د پخوا هرکله په نسبت په یوه نامتوازنه جګړه کې د نړۍ د یوه ځواکمن هیواد څخه د اشغال د شکست او د استقلال ډکټلو سند ترلاسه کړی.

د مذاکراتو او ډیپلوماتیکي مراودې یوه ساده تعبیر دا بلل کیږي چې د یو څه د ترلاسه کولو لپاره باید یو څه له لاسه ورکړل شي. اما که موږ د حوت د لسمې توافق په دقت سره وګورو رامعلومه به شي چې دغه توافق کاملا یو اړخیز او د جهادي صف په ګټه دی. همدا لامل وکله چې تېرکال د حوت په لسمه د دې توافقنامې جزئیات رسنیو ته راووتل نو نړیوالو څارونکو او د نظر خاوندانو هغه د اسلامي امارت سیاسي فتحه او ستره بریا وبلله. د بي بي سي راډیو یوه نړیوال تحلیلګر دغه توافق د طالبانو لپاره د ده په اصطلاح (بُرد بُرد) یعني سراسرګټه وباله، چې دا د اسلامي امارت د مذاکراتي ټیم په بریالۍ کارکردګۍ یوه مهمه ګواهي وه.

بله دا چې له امریکایانو سره په مخامخ مذاکراتوکې د افغانستان د جهادي مقاومت واقعي استازوګډون درلود. هغوی له بشپړ استقلال او د تصمیم او پریکړې له خپلواکۍ څخه برخمن ول. دغه توافق نه خو د نړیوالو ابرقدرتونو له منطقوي ستراتیژیو څخه اغیزمن و او نه هم د سیمې اوګاونډ د کوم هیواد سیوری ورباندې پروت وو. حتی چې په دې مذاکراتوکې کوم دریمګړي هم حضور نه درلود بلکې له اشغالګر اړخ سره د افغانانو مخامخ مذاکرات ول.

د اسلامي امارت د مذاکراتي پلاوي همدا خپلواکي د دې سبب شوه چې د دنیا له عالمګیر ځواک امریکا سره په میاشتو میاشتو سخت او پیچلي بحثونه وشول. له هغوی سره په هره خبره اوږدې چنې ووهل شوې او ټول موارد زموږ د ولس د دیني ارزښتونو او ملي ګټو په تناظرکې نهایي شول.

دکب د لسمې د توافق بل خصوصیت دا و چې د دې توافق ټول مواد د اسلامي شریعت د علماء کرامو له نظره هم تېر او تائید شوي دي. خلاصه دا چې په دې توافق کې د زموږ د مجاهد ولس د څو لسیزو د جهاد او قربانیو ستر اهداف (اسلامي نظام او خپلواکي) دواړه تسجیل شوي دي، چې دا خورا مهمه او تاریخي لاسته راوړنه ده.

خو دغه توافقنامه لکه څومره چې زموږ د هیواد او ولس په ګټه ده، همدومره د مقابل اړخ لپاره هم د موضوع د حل تر ټولو منطقي او یوازینۍ عملي لاره ده. نو ځکه که امریکایي ځواکونه غواړي چې په افغانستان کې نور ابرو ونه رژیږي باید چې د همدې توافق سره سم د افغانستان اشغال ته د پای ټکی کیږدي.

* * *

# د دوحې تړون؛
# د افغانستان او امریکا امنیت تضمینولای شي

حافظ نور احمد سعید
لیکوال او تحلیلګر

د ۱۳۹۸ل، کال دکب پر ۱۰مه دوحه کې داسلامي امارت او امریکا ترمنځ دافغانستان د اشغال د خاتمې تړون لاسلیک شو، د تړون د لاسلیک مراسم د ملګرو ملتونو، اسلامي کنفرانس، اروپايي ټولنې، چین، روسیې او دافغانستان د ګاونډیو هیوادونو داستازو او خارجه وزیرانو په حضورکې ترسره شول. د دوحې تړون څخه همدې هیوادونو او بنسټونو ملاتړ اعلان کړ او دایې دافغانستان د روانې کشالې د سوله ییز حل یوه ښه لار نقشه وبلله.

## د افغانستان او امریکا د اړیکو پس منظر:

د امریکا او افغانستان دغیر رسمي روابطو پیل له ۱۸۲۸م، کال څخه شوی، څه باندې یوه پیړۍ افغانستان او امریکا په همدې شکل غیر رسمي اړیکي پالل، په یاده شوې موده کې ګڼ امریکايي اتباع په بیلابیلو نومونو او دمختلفو موخو لپاره افغانستان ته راغلي، جوزیاه هرلان لومړنی امریکايي دی چې دامیر دوست محمد خان په واکمنۍ کې افغانستان ته راغلی او دلته یې مختلفې دندې ترسره کړې دي.

په ۱۹۳۶ کال - چې ظاهرشاه د افغانستان واکمن و-، افغانستان او امریکا رسمي او ډیپلوماټیکي اړیکې پیل کړي او تر دې مهاله له مختلفو پړاونو تېر شوي، کله یې مثبت اړخ غالب شوی اوکله یې بیا منفي اغېزو

افغانستان ته خورا درانه زيانونه اړولي دي. امريکا له افغانستان سره د رسمي سياسي روابطو د پيل څخه وروسته د افغانستان د بيارغونې، آبيارۍ او زراعت په برخوکې ځينې لويې او وړې پروژې تطبيق کړې، لکه هلمندکې دکجکي بند او بغرا کانال جوړول، کندهارکې د دهلې بند او لويې ويالې برابرول او د کابل- کندهار د لويې لارې جوړول.

۱۹۷۹کال چې شوروي اتحاد پر افغانستان يرغل وکړ، امريکا د افغان ولس تر څنګ ودريده، شوروي تېرى يې وغانده، د افغان ولس د جهاد ملاتړ يې وکړ او له مجاهدينو سره يې مالي او تسليحاتي مرستې جاري وساتلې. خو شوروي چې ۱۹۸۹ کې ماته وخوړه او له افغانستانه يې پښې سپکې کړې، د افغانستان له قضيې سره د امريکا لېوالتيا کمه شوه.

د ۱۹۸۹ څخه تر ۱۹۹۶ پورې چې طالبانوکابل نيوه، د ليکوال په نظر امريکا د يو ناظر او بې طرفه جهت په توګه افغانستان څاره، خوکله چې طالبانوکابل ونيو، امريکا يو وار بيا متحرکه شوه، د افغانستان په قضيه کې مداخله شروع کړه، د طالبانو د مخالفينو سياسي او اخلاقي ملاتړ يې پيل کړ، د ملګرو ملتونو تر چتر لاندې يې د طالبانو پر حکومت سياسي او اقتصادي بنديزونه ولګول او له مختلفو لارو يې په بيلابيلو پلمو د طالبانو حکومت تر ۲۰۰۱ کال پورې په انزوا کې وساته او د همدې کال د سپټمبر له پيښې وروسته يې پر افغانستان د پوځي تېري اعلان وکړ او د اکتوبر پر ۷مه امريکا او متحدينو يې زموږ پرګران هيواد ظالمانه او وحشيانه يرغل وکړ.

**پر افغانستان دامريکا يرغل لويه اشتباه:**

پر افغانستان د امريکا يرغل افغانستان او امريکا دواړو ته بې حسابه بشري، سياسي او اقتصادي تاوانونه ورسول. د امريکا يرغل افغانستان او افغان ولس ته خورا درانه زيانونه واړول، په لکونو افغانان شهيدان، ټپيان او

اسيران شول، عام المنفعه تاسيسات، مذهبي، تعليمي او روغتيايي ادارې، کلي او بازارونه بمبار او ويجاړ شول، په نړيواله کچه افغانستان اداري فسادکې جايزې وګټلې، اخلاقي فساد شرمونکي حالت ته ورسيد، د مخدره موادو کر، قاچاق او تجارت اوج ته ورسيد او د معتادينو شمېر تر دوه مليونه اوښتی دی، قومي او سمتي توپيرونه راپورته کړل شول، د مقدساتو توهين تکرار شو، په افغان فرهنګ او عنعناتو ملنډې ووهل شوې، د ملي اتلاتو د شخصيتونو او کارنامو د سپکاوي کمپاينونه ترسره شول اوپه ټوله کې د افغانستان پرمځکنې او هوايې حريم د يرغلګرو ولکه، د ملي استقلال له منځه وړل او افغان مجاهد ولس د محکوميت په دايره کې را ايسارول د نمونې په ډول يادولای شو.

همداراز امريکا هم د افغانستان په جګړه کې خير نه دی ليدلی، په زرګونو امريکايي پوځيان ووژل شول، لسګونه زره ټپيان شول، په زرګونو محاربوي او ترانسپورتي نقيله وسايط يې له خاورو سره خاورې شول او په لکونو هغه بهرني عسکر چې افغانستان کې يې دندې ترسره کړې په رواني او نفسياتي مهلکو ناروغيو مبتلاء شوي چې ځينو يې د همدې مريضيو له امله ځان وژنې هم ترسره کړې دي او امريکا د افغانستان جنګ کې تر يو ټريليون ډير ډالر مصرف کړي، خو د دې ټولو ځاني زيانونو او مالي مصارفو سربيره امريکا په افغانستان کې خپلو اهدافو ته ونه رسېده.

امريکا د اسلامي امارت پر ضد د پراخو پوځي- وحشيانه عملياتو او دوامداره تبليغاتو سره سره، سياسي، مالي، مذهبي او ټولنيز فشارونه هم وارد کړل، هره ناروا وسيله او حربه يې وکاروله خو اسلامي امارت يې کمزوری نه کړ او د يرغل له اول کال څخه ورځ په ورځ د يرغل پر ضد ولسي پاڅون پراخ او پياوړی شوی او د امريکا اوکابل حکومت د واک ساحه محدوده شوې ده.

ډیره مهم لا داده چې د افغانستان جګړې امریکا ته پرځاني او مالي زیانونو سربیره نور تاوانونه هم ورسول، په نړیواله سطحه یې د امریکا حیثیت خراب کړ او د یکه تازۍ له نړیوال قوت څخه یې د څو قطبي نړۍ سره مخامخ کړه.

امریکا له افغانانو سره تر ۱۸ کلنې خونړۍ جګړې وروسته د ۲۰۲۰م، د فبروري په ۲۹ مه نیټه دوحه کې له اسلامي امارت سره له افغانستانه د وتلو توافقنامه لاسلیک کړه چې مخکې هم اشاره ورته وشوه. د دوحې تړون پر څلورو مهمو او ټاکونکو برخو مشتمل دی:

امریکا او متحدین به یې د ۱۴میاشتو په جریان کې ټول عسکر، قراردایان او غیر ډیپلوماټیک پرسونل له افغانستانه باسي.

اسلامي امارت به چاه ته اجازه نه ورکوي چې د افغانستان خاوره د امریکا او متحدینو پر ضد یې وکاروي.

د بین الافغاني مذاکرات پیلیدل.

او د افغان جهتونو سره د افغانستان د راتلونکي لپاره پر یوې سیاسي لار نقشې یا ټول شموله اسلامي حکومت هوکړه ترسره کیدل.

**افغانستان او امریکا ته د دوحې د تړون ګټې:**

د دوحې د تړون تعمیل هم د افغانستان په ګټه دی او هم د امریکا، د دې تړون په عملي کولو سره د امریکا د تاریخ تر ټولو اوږده جګړه ختمیږي او له افغانستانه د امریکا امنیت ته د احتمالي خطر مخه نیول کیږي، امریکا چې د افغانستان په جنګ کې څومره بشري او مالي زیانونه ګاللي او تر اوسه چې هره ورځ څومره مصارف ترسره کوي، د دې ځاني او مالي تاوانانو مخنیوی د دوحې تړون کې نغښتی دی. د دوحې تړون په مراعاتولو سره امریکا کولای شي خپل بایللی حیثیت نسبتا اعاده کړي، له افغانستان سره ډیپلوماټیک روابط

جاري وساتي او په افغانستان او سیمه کې تجارتي، زراعتي او انکشافي پروژې عملي اوکټه ترې ترلاسه کړي.

همداراز د دوحې تړون په پلي کیدو سره افغان ولس له ذکر شوو ناخوالو اوکړاونو څخه خلاصیدای شي، د یو مظلوم ملت په حیث ملي استقلال ترلاسه کولای شي، له ازاد ژوند، امنیت او عدالت څخه برخمن کیدای شي او د خپلې خوښې نظام جوړولا ی شي.

**که د دوحې تړون عملي نشي!:**

که امریکا د دوحې تړون نقض کړي، جګړه به شدیده شي، افغانستان کې به دامریکا پر ملکي او نظامي تآسیساتو حملې زیاتې شي، ځاني تلفات او مالي مصارف به یې زیات شي، د جګړې د جریان مسؤلیت به ورله غاړې وي او پام وړ داچې امریکا د دوحې د تړون له عملي کولو پرته بله لاره هم نه لري، که هر څومره پلمې او حربې وکاروي، خو بالاخره به بیرته همدې تړون ته رجوع کوي او له همدې مسیره به تېریږي.

امریکا بار بار اعتراف کړی چې د افغانستان جنګ نشي ګټلای، هو دا یو واقعیت دی چې امریکا د افغانستان جنګ نشي ګټلای، امریکا به یوه ورځ خامخا له افغانستانه وځي، نوکومه پریکړه چې سبا ترسره کوي، نن باید واقعیتونه ومني، حقایق درک کړي، له افغانستان خپل ټول عسکر وباسي او افغانان پریږدي چې په خپل هیوادکې د خپلې خوښې نظام جوړ کړي.

افغانان د خپل باغي او غیرتي فطرت له مخې په خپل هیوادکې پردي پوځونه او لاسپوځي رژیمونه، نه زغمي، د دې ادعاء د ثبوت لپاره تېر شل کلونه یو ژوندی مثال دی. که ماضي ته سر ورښکاره کړو نو مونږ اتیا کاله له انګریزي ښکېلاک سره مبارزه وکړه، خسته نه شولو او پای مو ازادي ترلاسه کړه، له شوروي اتحاد او داخلي کمونستانو سره مو ۱۴ کاله جهاد وکړ او دا

دی د امريکايي يرغل پر ضد مو مبارزه شلوکلونو ته رسيږي، خو له دې دومره اوږدو مبارزو سره سره د خپل دين او وطن له دفاع ستړي شوي نه يو، په همدې مبارزو وياړو او په راتلونکي کې هم په افتخار سره د خپلو ارزښتونو، خاورې، ګټو او..... ساتنې ته چمتو يو.

دا يو انکار نه منونکی واقعيت دی چې افغان ولس نه کوم هيواد تهديد کړی او نه يې هم د چاه حريم نقض کړی دی، خو هر مستکبر او طاغوت چې د دې ملت پر حريم تجاوز کړی، بيا يې نو له خپلو حقونو په ډيره ميړانه دفاع کړې او يرغلګر قوتونه يې په مات سر او ټيټو سترګو له خپل وياړلي ټاټوبي شړلي او ځغلولي دي.

## اسلامي امارت؛ د افغان ولس واقعي استازی:

نړيوال مخصوصا امريکا بايد، اسلامي امارت افغانستان کې پر نورو سياسي او جهادي جريانونو قياس نه کړي، ځکه اسلامي امارت بې پرتلې ولسي ملاتړ لري، په بل عبارت اسلامي امارت د ولسي پاڅون دوهم نوم دی، د ولس په غوښتنه او ملاتړ يې پاټکسالارۍ او انارشۍ ته د پای ټکی کېښېښاوه او له تېرو دوولسيزو راهيسې د يرغلګرو او لاسپوڅي رژيم پر وړاندې د ولسي جهادي بهير مشري کوي.

نور زياتره جريانونه موسمي او سمتي پاته شوي، خو اسلامي امارت د هيواد په سطحه هغه اسلامي- ملي تحريک دی چې مختلف قومونه او قشرونه يې په خدمت لګيا دي، له بدخشانه تر هلمنده، له ننګرهاره تر هراته او له بلخه تر خوسته ټول ورونړه قومونه د اسلامي امارت په مشري د هيواد او دين ساتنې په مبارزه بوخت دي. نو بناء که هر هيواد او لوری له افغانستان سره اړيکي جوړول او پالل غواړي، د اسلامي امارت له وجود او دخالت پرته پايښت نشي کولای، اسلامي امارت هغه يوازينی ولسي معتدل بنسټ دی چې

کورنۍ کړنلاره او بهرنۍ تګلاره یې پر اعتدال بناء ده، پر سیاسي دوه مخۍ باور نه لري، قول یې له عمل سره مطابق دی، غدر نه کوي او د متقابلو جهتونو سره توافقاتو ته ژمن دی.

**پایله:**

باور دا دی که امریکا د ۲۰۰۱ کال راهیسې پر افغانستان یرغل او پراخه جګړه ییزه پالیسي نه وای غوره کړې، په نړۍ کې چې اوس د امریکا په وړاندې کوم اقتصادي، سیاسي او پوځي بلاکونه تشکیل شوي او د تکامل په حالت کې دي همدا به نه وای او امریکا به د اوسني ځوړ وضعیت سره نه وای مواجه شوې. که فرضا امریکا د دوحې له تړونه په یوه او بله پلمه تیښته وکړي او ناکامې تجربې بیابیا تکرارکړي، د جګړې د دوام مسؤله به وي، نړیوال حیثیت او سیاسي دریځ به یې نور هم ټیټ شي او له دې وروسته به څوک له امریکا سره سیاسي تعامل او جوړجاړي ته زړه نه نیسي. د دوحې تړون دافغانستان او امریکا د امنیت لپاره مثالي- امنیتي میثاق دی، په ټولو مادو یې باید د ټاکل شوي مهال ویش سره سم عمل وشي او د دې ګټور تړون په عملي کولوکې نور باید ځنډ رامنځته نشي، ځکه د همدې تړون تعطیل هم د امریکا په زیان دی او هم د افغانستان د جګړې د دوام سبب دی.

❊ ❊ ❊

# پیمان دوحه، اثرات و پیامدهای مثبت آن بر منطقه

مفتی انعام الله سمنگانی- نویسنده ومتخصص امور دینی

بسم الله الرحمن الرحیم

حمد و سپاسِ بی‌کران خدائی راکه فرموده است: وَمَنْ أَوْفَى بِعَهْدِهِ مِنَ اللّٰهِ، و درود و سلام بر قافله‌سالار عدل و عدالت، صاحب صلح حدیبیه، و بر یاران و جان‌برکفان راهش تا ابد. و بعد؛

نخبه و دانای شرق، دکتور محمد اقبال لاهوری چه خوش گفته است:

آسیا یک پیکر آب وگل است
ملت افغان در آن پیکر دل است
از فساد او فساد آسیا
در گشاد اوگشاد آسیا

افغانستان، یا آن دلِ پیکر آسیا، در چند دهه‌ی گذشته نه تنها برای افغان‌ها، بلکه برای منطقه و جهان هم دردسری بوده، و به تعبیری دیگر؛ درد افغانستان، درد جهان‌سوز، و اثرات و پیامدهای آن، فراگیر بوده‌است. اما پیمان تاریخی دوحه، فرصت نادری را فراهم کرده است که افغانستان، ژئوگرافی آینده‌ی سیاسی، امنیتی و اقتصادی را، به منفعت جهان و منطقه، تغییر دهد. البته؛ این وابستگی دارد به پای‌بندی واقعی سائر جهت‌های مستقل و غیر مستقلِ این پیمان، به تعهدات‌شان.

منطقه ما، در مدت بیست ساله اشغال کنونی افغانستان، با چهار بحران عمده‌ی امنیتی، اجتماعی، سیاسی و اقتصادی، مواجه بوده‌است. می‌خواهم در این مقاله، تحت عناوین چهارگانه، که عبارتند از: ۱ - پیمان دوحه و بحران امنیتی منطقه، ۲ - پیمان دوحه و بحران اجتماعی منطقه، ۳ - پیمان دوحه و بحران سیاسی منطقه، و ۴ - پیمان دوحه و بحران اقتصادی منطقه، پیمان دوحه را راه‌حل برای پایان‌دادن این بحران‌ها ثابت کنم؛ و در اخیر تحت عنوان تتمه، گفته های خود را در چند سطرهای کوتاه خلاصه نمایم.

به امید اینکه توجه شما عزیزان را تا پایان با خود داشته‌باشم.

## پیمان دوحه و بحران امنیتی منطقه:

نمی‌دانم این از بلندی نصیب و یا شوریِ بخت افغانستان است که در جوار و کنار چهارکشورهای اتمی (پاکستان، چین، هند و روسیه) قرار دارد! از کشور پنجم (ایران) هم خبری دقیق نیست که تلاش های مستمر آن به ثمر رسیده و یا هنوز دوام دارد. اما شاید این بسنده نبود، از همین‌ست که سه قدرت اتمی دیگر به نام‌های ایالات متحده امریکا، بریتانیا و فرانسه هم، به مثل مهمان‌های ناخوانده، وارد منطقه و به‌خصوص افغانستان می‌شوند و آتش هولناک جنگ را درین خطه‌ی بَلاخیز، داغ می‌سازند. آیا این بی‌باکی قدرت‌های اتمیِ غرب را، که مدعیان و اجاره‌داران حقوق بشر، پدر و مادر جمهوریت و پاسداران سیکولاریسم هستند، می‌توان توجیه نمود؟ هرگز و هرگز نه.

این یقینا بازی با آتشی بود که می‌توانست تمام این منطقه را به ویرانه تبدیل کند. این آتشِ سوزان نوزده سال کامل داغ ماند و هنوز هم خاموش نشده است. اگرچه بیش‌ترین هزینه‌ی آن را افغانستان و افغان‌ها پرداختند؛ اما

منطقه هم هیچ‌گاه خود را از شعله‌های هولناک آن مصون نپنداشته است. منطقه می‌دانست که این آتش خانمان‌سوز دامن‌گیر آن‌ها هم شده می‌تواند.

برای اینکه این آتش مهیب، مهیب‌تر نشود و بلکه با خاموش ساختن آن، آینده‌ی منطقه و جهان، مصون باشد، لازم است تا فرصت به‌دست آمده‌ی پیمان دوحه را، که به‌تاریخ دهم حوت سال گذشته میان امارت اسلامی و ایالات متحده امریکا امضا شد، نباید بی‌باکانه از دست داد. برای بازگرداندن وضعیت عادی در منطقه، باید امریکا، سازمان نظامی ناتو و سائر متحدان‌شان، با ارج گذاری به تعهدات این پیمان، اشغال دو دهه‌ی افغانستان را پایان دهند. بلی! کشورهای هفت‌گانه‌ی اتمی به‌ویژه امریکا، بریتانیا و فرانسه باید درک کنندکه دوام وگسترش آتش جنگ در افغانستان، چه پیامدها و تهدیدهای وحشتناکی، می تواند برای امنیت و مصونیت منطقه و جهان داشته باشد.

## پیمان دوحه و بحران اجتماعی منطقه:

اگرچه کشورهای این منطقه ازگذشته‌ها، نزاع و تنش‌های بین‌خودی داشته‌اند، مانند معضل دیرین پاکستان و هند، چین و هند و سائر معضل‌های خورد و بزرگ دیگر؛ یا چنانکه هند درین روزها هم‌زمان با کشورهای نیپال، پاکستان و چین، در موارد مختلفی دست‌وگریبان بوده‌اند. اما افغانستانِ اشغال‌شده و مستعمره، میدان دیگری را برای رقابت‌های منفی این کشورها مهیا ساخت. این رقابت‌های ناسالم، که به شکل سیستماتیک از داخل خاک افغانستان انجام می‌یافت و هنوز می‌یابد، نه تنها بر مشکلات افغان‌ها بیفزود، بلکه اوضاع منطقه را هم پرتنش‌تر و خطرناک‌تر ساخت. قدرت‌های منطقه، ملیاردها دالر را در این جنگ غیر مستقیم خود، در افغانستان هزینه کردند؛ اما دریغا سودی! نه افغانستان را نفعی عاید شد؛ نه افغان‌ها و نه هم خودشان بهره‌ای بردند. همان‌گونه که حضور نظامی قدرت‌های اتمی غرب، منطقه را

پرآشوب کرد، این رقابت‌های ناسالم نیز وضعیت منطقه را غیر عادی ساخت و بی‌باوری‌ها و نگرانی‌های زیادی را بین افغانستان وکشورهای منطقه به‌میان آورد.

کشورهای منطقه در حالی مشغول رقابت‌های ناسالم با استفاده از افغانستانِ مستعمره بودند، که به اساس یک گزارشِ سالانه در ۲۰۰۶ میلادی: ۴۰ در صد مردم فقیر جهان در آسیای جنوبی، که تنها یک بخشی از این منطقه است، زندگی می‌کنند. در حالی که آسیای جنوبی ۲۲ در صد جمعیت جهان را تشکیل می‌دهد. گویا گراف فقر در آسیای جنوبی، دو برابر گراف جمعیت آن است. هم‌چنان راپور پارسال سازمان ملل متحد نشان می‌دهدکه حدود دو و نیم‌صد ملیون کودک، تنها در آسیای جنوبی زیر خط فقر زندگی می‌کنند، که مایه‌ی نگرانی بزرگی برای جامعه‌ی بشری است. اما کشورهای این خطه، به‌جای تلاش برای پایین آوردن گراف فقر و گرسنگی در مملکت های خود، در پی این بودندکه از راه افغانستانِ بی‌صاحب، یکدیگر را زیر بیاورند و در منطقه دستِ‌بالایی داشته باشند.

اما اگر پیمان دوحه به شکل واقعی جامه عمل پوشانده شود و در نتیجه‌ی آن، نظام مستقل، با کفایت و با درایت اسلامی در افغانستان حاکم گردد، افغانستانِ آزاد می‌تواند این رقابت‌های ناسالم را نقطه‌ی پایان بگذارد، نقش سازنده و مؤثری را برای آینده‌ی بهتر منطقه و جهان ایفا کند؛ و به‌جای فصل، نقطه‌ی وصلی بین سائرکشورهای منطقه گردد.

## پیمان دوحه و بحران سیاسی منطقه:

در دو دهه‌ی اشغال؛ نداشتن سیاست مستقلانه و دمدمی بودن مواقف اداره‌ی بی‌اختیار و چندسره‌ی کابل در قبال منطقه، بی‌اعتمادی‌ای را به میان آورده است که در نتیجه‌ی آن؛ امروز از یکسو افغانستان هیچ اعتباری در

سیاست‌های درون منطقه‌ای ندارد و از سوی دیگر؛ تفاهم منطقوی هم در قبال سیاست‌های جهانی، به‌شدت جریحه‌دار شده است. منطقه به‌این باور است که سیاست خارجی افغانستانِ مستعمره، از سوی آنانی‌که از هزاران کیلومتر دور هجوم آورده و افغانستان را اشغال کرده‌اند، به‌مانند ابزار و بازیچه، به‌نفع خود، به‌کار برده می‌شود؛ که برای افغانستان و منطقه به‌جز زیان هیچ سودی ندارد. واقعیت موجود نیز چنین است که امروزه افغانستان به‌گونه‌ی بی‌پیشینه‌ای در معاملات منطقه کاملا در زاویه قرارگرفته‌است. عجب این‌ست که مقامات غرض‌آشنا و دست‌نشانده کابل، بر تیرگی روابط با منطقه، چنان می‌بالند و می‌نازند، گویا کارنامه و یا شهکاری انجام داده‌اند!

اما در صورت عملی‌شدن پیمان دوحه، افغانستان به‌حیث یک جهت مسئول و مستقل می‌تواند با اولویت‌دادن به منافع ملی خود - که یقینا با سرنوشت منطقه گره خورده است - این وضعیت را دگرگون سازد. عدم مداخله در امور سائرکشورها و ندادن اجازه برای مداخله‌ی دیگران در امور افغانستان، اصلی است که امارت اسلامی به‌طور مکرر در بیانیه‌های رسمی خود ابراز داشته است. عملی‌شدن این اصل می‌تواند وضعیت اضطراری‌ای را که سال‌هاست در مرزهای هزاران کیلومتری منطقه - به‌خصوص همسایه‌های افغانستان - حاکم است و نیروی بیش از حد نظامی و اقتصادی منطقه را هزینه کرده است، مداوا کند. نمایندگان واقعی افغان‌ها می‌توانند با ازبین‌بردن مسافت‌های ساختگی و بی‌معنای بین منطقه، این خطه را کوچه‌ی مثالی و نمونه‌ای در قریه‌ی جهانی بسازند.

آری، ایجاد اجماع منطقوی در برابر حضور نظامی آمریکا و متحدانش در افغانستان، از بین‌بردن سکوت جهانی در باره‌ی اشغال این خاک و بالاخره مذاکراتِ نتیجه‌بخش و بارآور با ایالات‌متحده برای پایان دادن اشغال، نشان‌دهنده‌ی قدرت فوق‌العاده‌ی سیاسی، دیپلوماسی و منطِقی طالبان

و در مجموع افغان‌هاست؛ که باید برای افغانستان، منطقه و جهان به فال نیک گرفته شود. این توانایی سیاسی و منطِقی افغان‌ها چراغ امید را برافروخته است که افغانستانِ پسا اشغال می‌تواند نقش عمده‌ای را برای آینده‌ی بهتر منطقه، ایفا نماید.

برخلاف آنچه پروپاگند می‌شد، گویا طالبان، تنها مشکل امریکا و غرب نیست؛ بلکه منطقه نیز تاب حضور پرشور و حیثیت محوری طالبان در افغانستان را ندارد؛ اما طالبان در مذاکرات هجده ماهه با ایالات متحده، و در جریان یکساله‌ی تطبیق پیمان دوحه، به اثبات رسانده اندکه ضمن اولویت دادن به ارزش‌های دینی و منافع ملی خود، می‌توانند با سیاست دوراندیشانه و مبتکرانه‌شان، قناعت منطقه را هم فراهم کنند. بلی، افغان‌ها می‌دانندکه روابط سازنده و استوار بر احترام متقابل، ضرورت مبرم برای امنیت و توسعه‌ی افغانستان و منطقه است.

از همین است حلقات مغرضی که طالبان را بار دوش منطقه می‌دانستند و از مفاهمه و معامله‌ناپذیری آن‌ها شاکی بودند، امروز از سفرهای پیهم و منظم هیئت‌های دفتر سیاسی طالبان به کشورهای مختلف منطقه، و همچنان از دیپلماسی فعال و دید و بازدیدهای اثرگذارشان به‌داد آمده‌اند و تلاش‌های آن‌ها برای تفاهم بین المنطقه را، جامه‌های رنگارنگ و دل‌خواه می‌پوشانند! حال این‌ست که باید این هماهنگی طالبان وکشورهای منطقه پس از پیمان دوحه؛ موجب اطمینان همه‌ی جوانب می‌شد و مورد استقبال همگان قرار می‌گرفت. البته - به استثنا از این حلقه‌ی بدخواه و بد طینت - یقینا که پیمان دوحه، سبب خاطرجمعی تمامی خیرخواهان منطقه و جهان گردیده است.

## پیمان دوحه و بحران اقتصادی منطقه:

آگاهان و دانشوران به این باورندکه قرن نوزده، قرن اروپایی‌ها و قرن بیست، قرن امریکایی‌ها بود؛ اما قرن ۲۱، قرن آسیایی‌شدن جهان و قرن اقتصاد است. مهم اینست که اولین و دومین جمعیت‌های بزرگ، دومین و پنجمین اقتصادهای بزرگ جهانی، در آسیا و به‌خصوص در منطقه‌ی ما، قرار دارند. اما مهم‌تر این‌ست که برنامه‌های توسعه‌ی اقتصادی این دو اقتصاد بزرگ جهان، که قدرت تغییر ماهیت اقتصاد جهانی در آینده نزدیک را دارند و چشم امیدی برای اقتصادهای مترقی جهان اند، بدون افغانستان نمی‌توانند به نحوه‌ی احسن شرمنده تعبیر شود.

با عملی‌شدن پیمان دوحه، افغانستان آینده و آزاد، می‌تواند در آسیایی‌شدن جهان و اقتصاد، نقش سالم، ارزنده و عمده‌ای را داشته‌باشد. هم‌چنان افغانستان مستقل می‌تواند با استفاده‌ی خوب از این فرصت های اقتصادی؛ گام‌های مؤثر و جدی را برای مبارزه با بحران روزافزون فقر و بیکاری در سطح افغانستان و منطقه بردارد. در حالی که هم‌اکنون به اساس راپور بانک جهانی، بیش از نیمی از جمعیت افغانستان زیر خط فقر زندگی می‌کنند و یا چنانکه اشرف غنی، رئیس ارگ می‌گوید: ٪۹۰ افغان‌ها زیر خط فقر قرار دارند.

پس از خروج ده‌ها هزار نیروهای اشغالگر خارجی در پایان سال ۲۰۱۴ میلادی، اقتصاد جنگی که از سال های ۲۰۰۲ و ۲۰۰۳ در افغانستان به میان آمده بود و رشد اقتصادی کشور ما را بسیار بالا نشان می‌داد، از بین رفت و اکنون سال‌هاست که افغانستان با رکود اقتصادی مواجه است.

دولت آینده‌ی اسلامی افغانستان می‌تواند با تمرکز به ایجاد، تشکیل و توسعه‌ی زیربناهای اقتصادی کشور، اقتصاد افغانستان را به پا ایستاده کند و

سهم فعال در توسعه‌ی اقتصادی منطقه هم داشته باشد. افغانستان بار دوش و خار چشم منطقه نه، بلکه شریک و رقیب دوست منطقه، در عرصه‌ی اقتصاد خواهد بود.

**تتمه:**

درکل، نظام و دولت واقعی اسلامی به‌رهبری افغان‌ها - اگر خواست خدا بود و در افغانستان حاکم گردید - می‌تواند با موازین بلند اخلاق اسلامی هم‌چون: لَا ضَرَرَ وَلَا ضِرَارَ و آیت کریمه‌ی وَالْمُوفُونَ بِعَهْدِهِمْ إِذَا عَاهَدُواْ، به جامعه‌ی بشری و به‌خصوص منطقه، نشان بدهدکه همسایه‌داری خوب، یعنی چه؟ و این واقعیت انکار ناپذیر است که منطقه‌ی ما مدت‌هاست ذائقه‌ی همسایه‌داری خوب را نچشیده‌است. دولت مستقل افغانستان این فلسفه را سفسطه ثابت خواهدکرد که "منفعت خود را در زیان دیگران باید جُست". افغانستانِ آزاد بدون اندک معامله‌گری بر ارزش‌های دینی و ملی خود، نقش ستودنی در صلح و ثبات منطقه خواهد داشت. افغانستان بازیچه و ملعبه‌ی دیگران نه، بلکه وفادار و پابرجا به همه‌ی تعهدات منطقوی و بین‌المللی خود خواهد بود.

مؤرخان و سیرت‌نویسان متفق اندکه پیامبر صلی‌الله‌علیه‌وسلم درکشوری به‌دنیا آمد، که درآن‌جا هیچ‌گاه سیستم منظم حکومت‌داری تجربه نشده‌بود؛ اما پیامبر صلی‌الله‌علیه‌وسلم قانون و نظامی را برپا نمود که دولت بزرگ اسلامی را به‌خوبی پیش برد و تا زمانیکه آن قانون و نظام عملی بود، دولت مسلمانان، بهترین و مهذب‌ترین دولت جهان بود. پیروان آن سرورکائنات صلی‌الله‌علیه‌وسلم ثابت خواهند نمود که نقوش و بنیادهای ماندگار آن سیستم دولت داری، امروزه هم نسخه‌ی کیمیا برای پیش‌برد جامعه‌ی بشریت است.

به امید اینکه سائر جهت‌ها به پیمان دهم حوت دوحه متعهد بمانند و معضل بیست ساله و بلکه چهل‌وسه ساله‌ی افغانستان و منطقه پایان یابد.

فیلسوف محبوب ما محمد اقبال لاهوری علیه‌الرحمه در «زبور عجم» دل فگار ما را چنین مژده‌ی جان‌افزا می‌دهد:

فکـــر رنگیـــنم کنـــد نـــذر تهیدســـتانِ شـــرق
پـــاره‌ء لعلـــی کـــه دارم از بدخشـــان شـــما
می‌رســد مــردی کــه زنجــیر غلامــان بشــکند
دیـــده‌ام از روزن دیـــوار زنـــدان شـــما
حلقــه گــرد مــن زنیــد ای پیکــران آب وگِــل
آتشـــی در ســـینه دارم از نیاکـــان شـــما

و من الله التوفیق.

* * *

# د دوحې له تړونه داسلامي امارت لاسته راوړنې

مولوي محمد ابراهيم نبيل
ليکوال او د سياسي چارو څېړونکی

الحمدلله رب العالمين و العاقبة للمتقين والصلاة والسلام علی اشرف الانبياء والمرسلين محمدٍ و علی آله و اصحابه اجمعينَ و بعد!

فقد قال الله تعالی فی محکم کتابه و هو اصدق القائلين:

أعوذ بالله من الشيطان الرجيم: وَاذْكُرُوا إِذْ أَنْتُمْ قَلِيلٌ مُسْتَضْعَفُونَ فِي الْأَرْضِ تَخَافُونَ أَنْ يَتَخَطَّفَكُمُ النَّاسُ فَآوَاكُمْ وَأَيَّدَكُمْ بِنَصْرِهِ وَرَزَقَكُمْ مِنَ الطَّيِّبَاتِ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ [الانفال] صدق الله العظيم

د سيمنار نوم او مقتضا ته په پام مې خپله مقاله (د دوحې له تړونه داسلامي امارت لاسته راوړنې) تر عنوان لاندې ترتيب کړې، هيله ده د پام وړ مو وګرځي.

تر هرڅه مخکې به دا خبره واضح کړو چې د اسلامي امارت لاسته راوړنې د دې بنسټ د مسؤلينو او اشخاصو لاسته راوړنې اوګڼې نه دي چې خير او منفعت يې يواځې دوی ته رسيږي، بلکې د دوحې له تړونه ټولې لاسته راوړنې د افغانستان او د افغانستان د مسلمان ولس لاسته راوړنې دي، که څه هم په دې لارکې د افغانستان د اسلامي امارت د رهبري له مقامه نيولې بيا تر ادنی فرده پورې ټولو نه هېرېدونکې قربانۍ ورکړې، خو له دې هم سترګې

نه شي پېښدای چې مجاهدینو دغه مزل د ولس له ملاتړ او همکارۍ پرته هیڅکله هم نه شوای ترسره کولای، نو په دې توګه ویلای شو چې افغان مسلمان مجاهد ولس ترې په څو برابره زیاتې قربانۍ ورکړې دي.

د سمینار چاپېریال او ماحول غوښتنه کوي چې د دوحې له تړونه د افغانستان اسلامي امارت لاسته راوړنې مشخصاً په ګوته کړو د وخت نزاکت په نظرکې نیولو سره سره به کوښش وکړو چې په اجمال بسنه ونه شي او ترخپله وسه یې په تفصیل سره را واخلو ترڅو د مقالې حق ادا او ټولې لاسته راوړنې پکې راونغاړل شي.

که په عمومي ډول په دغو لاسته راوړنو نظر واچوو نو په دوه ډوله یې وېشلی شو: لومړی سیاسي یا بهرنۍ او دویم نظامي یا کورنۍ لاسته راوړنې.

**د اشغال خاتمه:**

که د دې تړون له ټولوګټو او لاسته راوړنو تېر شو او په بشپړ تنفیذ سره یې یواځې د اشغال پای او خاتمه په ګوته کړو؛ نو همدا هغه لاسته راوړنه ده چې دافغانستان په تېر تاریخ او را وروسته کې به یې بېلګه او مثیل ترلاسه نه شي، د زبرځواکونو د انسان وژونکو پرمختللیو وسلو او د اتوم په زمانه کې چې پر اقتصاد هم د دوی قبضه وي؛ د خپلواکۍ رسمي وثیقه ترلاسه کول وړه او آسانه خبر نه ده، تر ټولو مهمه داچې د هر ډول پرمختګ، ښېرازۍ او هوساینې لومړۍ دروازه خپلواکي او استقلال ده، که استقلال ونه لرو له نړۍ سره د سیالۍ او پرمختګ هره هڅه بې ځایه، د تعقل او دوراندېشۍ خلاف عمل دی، ځکه خو اسلامي امارت په وار وار واضحه کړې چې زمونږ لومړیتوبونه اسلامي ارزښتونه او د هیواد علیا مصالح دي.

**په نړۍ کې سیاسي اعتبار:**

د سیاسي یا بهرنیو لاسته راوړنو په برخه کې د تړون په ترسره کېدو سره چې اسلامي امارت په نړۍ کې کوم حیثیت او اعتبار ترلاسه کړ، د سیاسي تنظیمونو په حیث څه چې ډېرو هیوادونو به هم دومره اعتبار او حیثیت نه وي ترلاسه کړی، ځکه دا تړون له یوه، دوو هیوادونو سره نه! بلکې په حقیقت کې له ټول غرب، امریکا او اروپا سره هغه سیاسي معاهده ده چې د سیمې دهیوادونو، ملګرو ملتونو او امنیت شورا په ګډون د ټولو معتبرو سازمانونو حضور او ملاتړ یې په برخه و، او سره له دې چې دکابل حکومت د دوی په لاسو جوړ حکومت و خو بیا یې هم د یو هیواد او ولس د نماینده او استازي په ډول د افغانستان له اسلامي امارت سره معامله ترسره کړه او دوی یې دهغوی حقیقي استازي وبلل، د نن په دنیا کې دغه سیاسي اعتبار دهیوادونو په سطحه دکلونو خورا کامیابې دیپلوماسۍ په نتیجه کې هم نه ترلاسه کیږي، خو اسلامي امارت د یوې سیاسي معاهدې په ترڅ کې ترلاسه کړ.

**خپله سیاسي ځیرکتیا په دنیاوالو منل:**

دغه راز د افغاانستان اسلامي امارت رهبرۍ مقام، سیاسي کمیسیون او په ټوله کې د طالبانو سیاسي درایت او ځیرکتیا ټولې نړۍ ومنله بلکې په نړۍ کې ډېرو خوځښتونو او نورو نهضتونو ته یوه نمونه تګلاره او اسوه هم شوه.

**په افغانستان کې د نه مداخلې تضمین:**

د تړون په متن کې په صراحت سره لیکل شوي چې "متحده ایالتونه او متحدین به یې د افغانستان د ځمکنۍ بشپړتیا او سیاسي خپلواکۍ په ضد له ځواک اوګواښ څخه کار نه اخلي او نه به یې په کورنیو چارو کې لاسوهنه کوي" دافغانستان د خپلواکۍ او استقلال وثیقه همدا ده دا هغه وثیقه ده چې د نړۍ په تاریخ کې به چاته نه وي ورکړل شوې اوکه ورکړل شوې وي هغه به بیا هم افغانستان وي، په نړیواله رسمي سطحه په هیوادکې د نه مداخلې

سند تر ټولو مهمه لاسته راوړنه ده چې د افغانستان اسلامي امارت افغانستان ته ترلاسه کړه.

د نظامي یا کورنیو لاسته راوړنو په برخه کې هم ډېر څه شته چې اسلامي مارت په خورا ځراکت او د کامیابې دیپلوماسۍ په نتیجه کې ترلاسه کړي چې ځینې به یې مشخصاً په ګوته کړو.

**د بندیانو خلاصون:**

لکه څنګه چې تاسو ته معلومه ده د ترون په ړومبنیو بندونوکې د ړومبي شرط په توګه د (۵۰۰۰) بندیانو خلاصون ځای په ځای شوی و، که څه هم د دې بند په ترسره کېدو کې تاخیر راغی او لکه څنګه چې د ترون غوښتنه وه په هغه بڼه ترسره نه شو، خو خپلوکورونو ته د دغو بندیانو راستنېدل اوله زندانه خلاصون یې هغه لاسته راوړنه ده که خدای مه کړه ترون نور په ټوله معنی عملي هم نه شي له خپل ټول نړیوال حیثیت سره سره یې په دې ارزي چې یواځینی محصول یې همدا د بندیانو خلاصون شي، په رښتیا چې اسلامي امارت د خپلو افرادو او ماتحتو مجاهدینو ژوند او صحت ته خورا زیاته پاملرنه لري او په دې برخه کې جدیت یې ډېر ښکاره دی.

**د ډرون حملو بندېدل:**

دامریکایي اشغال په وړاندې مقاومت ډېرې لوړې ژورې او سختې مرحلې په مخ کې لرلې، په دې کې شک نه شته چې امریکا او ناټو په نظامي لحاظ د دې عصر تر ټولو پرمختللي قوتونه دي، هغه وسائل او وسلې چې د دوی عسکر پرې سمبال دي مقابل او سیال به یې څوک نه وي، ځمکني او هوایي تجهیزات یې ډېر پرمختللي او مدړن دي، د دوی د دې جنګي اوزارو په وړاندې مقابله خورا سخته او ستونزمنه وه، خو هوایي بمبار او په ځانګړې ډول ډرون حملې یې دیادولو وړ دي چې له شک پرته ډېرې خطرناکې او

اغېزناکې وې، د تړون په ترسره کېدو سره تر ډېره د دې حملو بندېدل مجاهدینو ته مهمه او حیاتي لاسته راوړنه ده.

**د شپنیو عملیاتو توقف:**

له دې سره په څنګ کې د تړون له مخې دشپنیو عملیاتو توقف هم هغه مهم او ارزښتمن ګام دی چې په عملي کېدو سره یې زمونږ ولس دآرام ساه واخیسته اوملکي تلفات چې عمده لامل پکې بمبار او شپني عملیات و تر ډېره حده کم شول، مجاهدین چې په وسلو سمبال او دغه ډول پېښو ته په تیارسي کې وي له دې عملیاتو تر ډېره نه متضرر کېدل، خو عام ولس چې د دغسې حملو په وړاندې یې هیڅ دفع نه لرله ډېرې قرباني یې همدوی وو.

**د نظامي افرادو د تلفاتو کمی:**

لکه څنګه چې امریکایان د تړون له مخې مصؤن شوي، په ورته ډول د مجاهدینو او نظامي افرادو په مرګ ژوبله کې هم تخفیف راغلی او د تړون د لاسلیک له ورځې راهیسې که څه هم ځای ځای سرغړونې شوې، خو په ټوله کې له دې اړخه د اسلامي امارت د نظامي افرادو او مجاهدینو په تلفاتوکې دپام وړ کمی راغلی.

**له تور لست څخه د نومونو وېستل:**

دامریکا دیرغل له بېلابېلو حملو او بندیزونو څخه یو هم په تورلست کې د اسلامی امارت د مسؤلینو نومونه شاملول و، له هغوی سره د شوې معاهدې له لاسته راوړنو څخه یوه هم له دې لست څخه د نومونو وېستل دي، که څه هم په دې برخه کې ټول کار نه دی تمام شوی او دځینو مسؤلینو نومونه لاهم په دې لست کې شامل دي، ولې د ځینو نومونو وېستل، ښکاره ده چې لاسته راوړنه ده او مونږ وینو چې ډېری مشران بېلابېل خارجي سفرونه هم ترسره کوي.

## د افغانستان هر ډول پرمختګ ته زمينه سازي:

د دوحې تړون چې په ټوله کې د امن او سولې رامنځته کېدو ته لومړی اساسي قدم دی په عملي کېدو سره يې ټولو اساسي پرمختګونو او خوښيو ته لاره هوارېږي او پاته ناخوالې اوناورينونه ورسره له منځه ځي. د دې تړون په انعقاد سره په هيوادکې هر ډول پرمختګ ته لاره هواره شوه، که چيرته ټول په ټوله عملي شي شک نشته چې د دې هيواد دپرمختګ اوله سيالو هيوادو سره دسيالۍ اساس به همدا تړون وي.

## د افغان ولس ښېرازي، هوسايي، ....

د تړون د ځينو مادو په عملي کېدو سره چې مخکې يې هم يادونه وشوه د افغان مسلمان ولس نسبي هوساينه رامنځته شوې چې تريوحده له کړاوونو، تهديد او مرګ ژوبلې خخه په کرار شول، خوکه په بشپړ ډول عملي شي او ټولې خواوې ورته خپله ژمنتيا وښيي نوله شک پرته چې دهيواد په ټولو برخو کې به زمونږ ټول ولس ورسره آرام اوراحت شي، ځکه امن به رامنځته شي او د امن په رامنځته کېدو سره به دا ځورېدلی ولس له کړاوونو او ځوره خلاص شي، نو ويلای شو چې دافغان ولس هوساينه اوسوکالي هم د دې تړون نغده لاسته راوړنه ده.

## په افغانستان کې د ټولشموله اسلامي نظام قايمېدو ته زمينه سازي:

د اسلامي نظام قائمېدل د اسلامي امارت تر ټولو ستر اواساسي هدف دی داسې هدف چې له نشأته يې تردې دمه ټولې خوراې قربانۍ اوکړاوونه د دې هدف د ترسره کېدو لپاره وې، په تړون کې دامادہ په ځای کول چې " متحده ايالتونه او د افغانستان اسلامي امارت... يو له بل سره مثبتې اړيکې غواړي او هيله لري د بين الافغاني ډيالوګ او مذاکراتو له لارې تر جوړجاړي وروسته د متحده ايالاتو او د نوي افغان اسلامي حکومت تر منځ اړيکې

مثبتې وي" د دې هدف د ترسره کېدو په لارکې لومړی قدم او مهمه لاسته راوړنه ده.

د دوحې د تړون لاسلیک او بیا په داسې ډول چې نړۍ د ټولې بارسوخه او مؤثرې نړۍ د هیوادونو د خارجه وزیرانو او سفیرانو په سطحه دیپلوماتانو پکې ګډون درلود په حقوقي ډول د اسلامي امارت په رسمیت پېژندنه ده، نه تنها په رسمیت پېژندنه، بلکې د اسلامي امارت داعیه برحقه ګڼل دي او ټولې هغه دعوې یې حقیقت مومي چې له اشغال سره د مقاومت په دوره کې یې غږ پورته کړی. په دې ډول د اسلامي امارت او امریکا ترمنځ د دوحې تړون د اسلامي امارت ډېره ستره بریا ده.

د دوحې له تړونه د اسلامي امارت لاسته راوړنو په برخه کې مې دغه یوڅو ټکي د دې وړ بللي چې ستاسو په مخکې یې عرض کړم، خودا مې هم زړه مني چې ټاکلې موضوع ته به کافي نه وي اولکه څنګه چې په کار وه هغسې مې د موضوع حق نه دی اداکړی.

په پای کې د دې سیمنار د دایرولو ابتکار ستایم، په رښتیا هم په دغسې زماني مقطع کې دغسې اجتماع ډېره ضروري او په افغانستان کې د سولې او امن درامنځته کېدو په لارکې خورا مثبت ګام دی.

الله تعالی دې نور زمونږ هیواد دامن زانګوکړي اومتعال ذات دې دغه ځورېدلي ولس ته هوسایي ور په برخه کړي.

*** 

# که امریکا تړون مات کړ!
# څه به ترلاسه؟ اوڅه به له لاسه ورکړي؟

م شمس الدین منصور
لیکوال او د سیاسي مسائلو شنونکی

بسم الله الرحمن الرحیم

الحمد الله رب العالمین والصلوة والسلام علی خیر خلقه سیدنا و مولانا محمد وعلی اله وصحبه اجمعین و علی من تبعهم باحسان الی یوم الدین.

وبعد!

د دې علمي، سیاسي او تحلیلي مجلس درنوګډونوالو ورونو!

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته

خوښ یم چې له ما نه وړاندې څو تنو د علم، تحقیق، سیاست او فرهنګي میدان محترمو شاه سهورانو او مخکښانو ورونو پخپلو با محتوا عالمانه مقالوکې په یو لړ مهمو موضوعاتو باندې ښه په بصیرت سره فاضلانه اوعالمانه رڼاواچوله او ډېرګټور علمي مفاهیم اوجامع معلومات یې وړاندې کړل چې هغوی ته د څښتن تعالی څخه مزید سیاسي بصیرت او دعلمي ترقۍ توفیق غواړم.

قدرمنو ورونو! څنګه چې تاسوته بهتره معلومه ده له نن څخه یوکال وړاندې یعنې د۲۰۲۰زکال د فوروري په ۲۹مه نېټه چې دکب د لسمې نېټې سره سمون خوري زمونږ دګران هیواد (افغانستان) نه د اشغال د خاتمې په اړه د

افغانستان اسلامي امارت د سیاسي دفتر استازو او د امریکا متحده ایالاتو د حکومت استازو لخوا داسلامي اوعربي هیواد (قطر) په پلازمینه (دوحه) کې د نړیوالو په حضور کې یو تاریخي هوکړه لیک لاسلیک شو، دکوم په ترڅ کې چې تردې مهاله په زرګونو امریکایي عسکر وتلي اوهم د دواړو لوریو څخه د۶ زره نه زیات بندیان ازادشوي دي.

یقیناً افغان ولس لره یاده هوکړه له دې پلوه د ډاډ وړ وه؛ اوده؛ چې د زرګونو امریکایي عسکرو په وتو اود زرګونو بندیانو په ازادیدو سربیره له امله یې په هیوادکې شپیني عملیات ودریدل، د ډرون بریدونه بند شول او د افغانانو ترمنځ بین الافغاني مذاکرات هم پیل شول.

البته افغان ولس به هغه مهال پوره ډاډ ترلاسه کړي چې کله دیادې هوکړې د ژمنې سره سم دروان ۲۰۲۱ زکال د مې میاشتې ترپایه د امریکایي عسکرو په ګډون هیوادکې میشت ټول بهرني ځواکونه افغانستان تخلیه کړي او بیرته خپلو، خپلو هیوادونو ته ستانه شي.

هو! د تیر یوکال په دوران کې که څه هم دامریکایانو له لورې د یاد تړون د ژمنو څخه تخطۍ او سرغړونې هم ډیرې وې بیا هم افغان ولس له دې پلوه ورته خوشبین و اودی، چې د۱۴ میاشتو وروسته به که خدای کول افغانستان د بهرني اشغال له سلطې څخه په وتلو بیا د ازادۍ ساه واخلي او افغان ملت به د نړۍ د سیالو ملتونو او ولسونو ترمنځ بیرته خپل بایللی برم او مقام ترلاسه کړي.

## ایا د افغانستان اسلامي امارت دوحې تړون ته ژمن دی؟

اوس دا چې د افغانستان اسلامي امارت د دوحې په تړون کې له خپل اړخ نه په کړو ژمنو او تعاهدونو په ماضي کې څومره ژمن پاته شوی دی؟ اوپه راتلونکي کې ورته څومره ژمنتیا لري؟ او د رعایتولو یا تطبیقولو په لړکې یې تر

کومه حده خپل دیني او اخلاقي مسؤلیت احساسوي؟ او درعایتولو په اړه یې نړیوالو او خپل ولس ته له خپل لوري نه څه ډول ډاډ اوباور ورکوي؟ بناً ضروري بولم چې دلته د درنو دوستانو په وړاندې د افغانستان اسلامي امارت د مرستیال الحاج خلیفه صیب (ملاسراج الدین حقاني حفظه الله) د وروستۍ وینا یو اقتباس کټ مټ ولولم:

الحاج خلیفه صیب حفظه الله وایي: د دوحې توافقنامې په جریان کې جناب شیخ صیب «امیرالمؤمنین حفظه الله» له خورا زیات دقت څخه کار اخیستی، په نظامي امورو کې مو هغه دومره مصروف نه دی لیدلی لکه په سیاسي امورو کې.

که یوه معمولي جزیه او سطحي خبره هم وي، رهبري شورى ته یې راجع کوي او د رهبري شورى وروسته یې مشایخو کرامو ته راجع کوي له هغه وروسته چې کله په کامل اطمینان سره د شریعت له لاړ براتوار نه ووځي؛ قطر دفتر ته یې لیږي.

او دا چې درګرده امریکایان له توافق نامې څخه سرغړونې کوي، مثلا: په یو ځای کې چاپه اچولې او په بل ځای کې بمبارکړې په دې اړه

شیخ صاحب حفظه الله وایي: موږ په شریعت منګولې لګولې دي، موږ ته د اسلام مقدس دین معتبر دی، د اسلام په ټول تاریخ کې چېرته هم مسلمانانو معاهدې ندې نقض او ماتې کړې، بلکې کفارو لومړی معاهدې نقض کړې او ور څخه یې سرغړونې کړي دي، بیا هم که چېرې موږ د مجبوریت په وجه معاهده ماتوله نو په غدر او دوکه به یې نه ماتوو، څنګه چې ټوله دنیا مو د معاهدې د لاسلیک پر مهال راجمع کړې وه، هغسې به بیا نړۍ راجمع کړو چې موږ په دغو ټکو (امریکا) له تا سره معاهده کړې وه، اوس چې تا ماته کړه زموږ لخوا هم د فلاني تاریخ څخه وروسته درسره ماته ده.

محترم خليفه صيب وړاندې وايي: حاصل داچې في الحال شيخ صاحب حفظه الله ټولو مسؤولينو او قوماندانانو ته دا هدايت او توصيه کوي چې د معاهدې کامل خيال او رعايت وساتئ.

خليفه صيب د شيخ صيب حفظه الله له خولې دا هم وايي: که موږ لس ولايتونه په غدر يا دوکه فتحه کړو، دا زموږ لپاره کاميابي نه ده، ځکه چې الله تعالى پرې ناراضه کيږي او د اسلام او مسلمانانو تاريخ پرې داغدارکيږي.

دپورتني اقتباس الفاظ د دې ښکارندوی دي چې د افغانستان اسلامي امارت د دوحې په تړون کې له خپل اړخ نه د ټولوکړو ژمنو د لحاظولو او تطبيقولو په اړه ښه روښانه مسير او معقول سياسي دريځ لري اوپه دې لړکې د اسلامي شريعت مزاج (چې دعهد نقض نه زغمي) نه يوائې په کلکه توګه رعايتوي بلکې ساتنه يې خپله ديني فريضه اواخلاقي وجيبه هم بولي.

هرچې د بل جهت يعنې د امريکا د متحده ايالاتو د حکومت دريځ دی، تردې مهاله که څه هم رسماً سپينې ماڼۍ د ياد تړون د راتلونکي په باره کې واضح موقف يا دريځ ندی ښکاره کړی، البته يوشمير نړيوالو رسنيو د بايډن ادارې چارواکو له خولې داسې راپورونه خپاره کړي دي چې ګواکې د امريکا د متحده ايالاتونو نوی ولسمشر او د هغه حکومت غواړي د دوحې د تړون له سره ارزونه او بيا کتنه وکړي ليکن ښکاره ده چې د افغان ولس مطلق اکثريت د دوحې په تړون کې هرډول ترميم و تغيرکول افغانستان کې د جګړې او اشغال د غځولو په معنى تعبيروي او په ټوله منطقه اوسيمه کې د نورو نا امنيو اوبې ثباتيو د خورولو مردود جسارت اوبد پيغام يې ګڼي.

ولې پوهيږو! چې ځيني مغرضې کړۍ اوګوډاګيان په هيوادکې دامنيت وثبات ټينګښت خپلو شومو اغراضو لره د خطرزنګ بولي هغوی له وړاندې څخه ديته تيار په کمين کې وو او دي چې څو د جعلي دلايلو اوپلمو په تراشلو

سره د دوحې تړون لغوه کړې او په افغانستان کې د امریکایي ځواکونو د اشغال موده نوره هم و غځوي.

هو! داشغال د مودې غځولو په اړه د افغانستان اسلامي امارت موقف واضح اوجوت دی چې له افغانستانه دامریکا په ګډون د ټولو خارجي اشغالګرو ځواکونو وتل د دوحې د هوکړه لیک اصلي روح او مهمه غوښتنه ده.

ورونو! مونږ وینو چې یوشمیر رسنۍ د دروغو په خپرولو سره قصداً غواړي چې د دوحې تړون څخه د سرغړونو تورونه په اسلامي امارت پورې کړې حال داچې هغوی داسې شواهد اوقراین په لاس کې نلري چې وښیي چیرې اوکله د افغانستان اسلامي امارت د تړون څخه د تخلف مرتکب شوی دی تاسو وړاندې واریدل چې د تړون رعایتولو په اړه د امیر المؤمنین شیخ صیب حفظه الله دریځ قاطع دی چې د اسلام په ټول تاریخ کې چېرته هم مسلمانانو د معاهداتوپه ماتولوکې لومړیتوب ندی کړی، همیشه کفارو معاهدات نقض کړې دي اوکه کله ضرورت پیښ هم شو نو هیڅکله به یې په غدر او دوکه کولو سره نه ماتوو.

## که امریکا عسکر ونه باسي؟

پاتې شوه دا، که د امریکا نوی حکومت رښتیا هم د روان ۲۰۲۱ زکال د مې میاشتې ترپایه خپل ځواکونه ونه باسي، نوپه پایله کې به امریکا څه ترلاسه کړي؟ ایا خپل شکست به په بري باندې بدل کړای شي؟ په دې اړه اړتیا ده چې ماضي ته په سر ورښکاره کولو سره معلومه کړو چې هرکله امریکا دغه ډول اشتبهات یا تیروتنې تکرارکړې دي په پایله یې کې څه ترلاسه کړي؟ اوڅه یې له لاسه ورکړي دي؟

کله چې په ۱۹۶۹ زکې امریکا د شمالي ویتنام پخلاف پراخه جګړه پیل کړه اوپه مقابل کې یې د شمالي ویتنام د مقاومت جبهې د امریکا په وړاندې خپل مقاومت پراخ او شدیدکړ، له زیاتې غوسې نه د امریکا د هغه مهال ولسمشر جانسن د اکتوبر په ۳۱مه نیټه د قوي بمبارد حکم وکړ، د هغه مهال په تاریخ کې یې ترټولو زیات وحشتناک بمبارد شروع کړ، دکوم په ځواب کې چې د ویتنام جنګیالیو هم په ځوابي تندریزو بریدونو لاسونه پورې کړل، اوپه امریکایې پوځیانو یې دومره دقیق اوپرېکنده بریدونه ترسره کړل چې له ډاره یې دامریکایي پوځیانو مورالونه دومره پرېوتل چې هغوی به د جګړې د نوم اوریدو څخه هم ډاریدل، دیته په کتو د امریکا دننه د جګړې په مخالفت کې د خلکو یویو سیلاب راپورته شو، یواځې د نیویارک ښار په یوه لاریون کې پنځوس لکه خلکو د ولسمشر جانسن د پریکړې پر ضد لاریون وکړ، تردې چې جانسن پخپل ولس کې دومره منفور اونامنلی شو چې په همدې کال د ولسمشرۍ په ټاکنوکې یې دګډون څخه ډډه وکړه، د هغه وروسته (رچرډ نکسن) د امریکا نوی ولسمشر شو، هغه چې کله واک ترلاسه کړ نوپه وړاندې یې لکه د بایډن پشان دوه لارې وې، یوه لار داوه چې دویتنام څخه خپل ټول پوځیان وباسي او دوهمه داوه: که دی هم د جانسن په پیروۍ کې د جګړې لارغوره کړي؟ د لومړۍ لارې یعنې د پوځیانو ویستو په پریکړه کولوکې یې اندیښنه درلوده چې څنګه لومړی امریکایي پوځي له ویتنام څخه ووځي ورسره به د امریکا د نړیوال (سپرپاورتوب) غرور مات شي او په نړۍ باندې به د امریکایانو د واکمنۍ کولو خوبونه وتښتي او د دوهمې لارې په غوره کولوکې ورسره د نورو تلفاتو اوزیانونو د زغملو اندیښنه وه چې هسې نه امریکایان به نور تلفات ورکول و نشي زغملی، بالاخر داوږده سوچ او غور وروسته یې دوهمه لاریعنې د جګړې د دوام پریکړه وکړه، ویتنام ته یې نور تازه دمي ځواکونه واستول د بماردونو سلسله یې نوره هم زیاته اوچټکه کړه،

تـردې پـورې چـې يـواځې د ويتنـام پـه دوه مهمـو ښـارونو (هنويي، اوهـايي فونګ) يې په يوولس ورځوکې د يولک نه زيات بمونه استعمال کړل، دکومو مجموعه وزن چې په هيروشيما باندې د توغول شويو اتومي بمونو څخه پنځه واره زيات وو، ديته په کتـو سره ولسمشـر نکسـن ويـل: دومـره زيـاتو بمونـو د استعمال وروسته دکوم قوم ژوندي پاته کيدل ناشونې دي او پاته لا داچې هغه دې ازادي ترلاسه کړې! ليکن څومره چې امريکـا پخپـل وحشـت اوظلـم کـې زياتوالی کاوه هغومره يـې پـه وړانـدې ويتنـام کـې مقاومـت پيـاوړی اوغښـتلی کيده، تردې چې په ۱۹۷۳ زکې د جنوري مياشتې پـه ۲۷مـه نېټـه امريکـا خپلـه ماتې ومنله او د خپلو پوځونو د ويستلو اعلان يې وکړ په نړۍ کې تـردې مهالـه دا وياړ هم د امريکا په برخه دی چې هغه د مقبوضه هيواد نه په زياته چټکـۍ سره د خپلو پوځيانو ويستوکې ساری نلري نوهغه مهـال هـم ايلـه دوه مياشـتې تيرې وې چې د۱۹۷۳ زکال د مـارچ پـه ۲۹مـه نيټـه د امريکـا وروسـتی پـوځي کنډک په ډېره بدرنګۍ سره دويتنام نه ووت.

## د ويتنام او افغانستان پرتلنه!

څنګه چې امريکا د ويتنام په جنوب کې د خپل يو لاسپوڅي اوګوډاګي رژيم د شتون څخه دفاع کوله يا په بـل تعبير څنګـه چـې امريکـا د ويتنـام پـه جنوبي برخه باندې خپل يو لاسپوڅي رژيم تحميل کړی و، په ورته شـکل يـې نن په افغانستان باندې هم جبراً يوه ګوډاګۍ اداره تحميل کړې ده، څنګه چې د جنوبي ويتنام تپل شوی رژيم د ويتنام د خلکـو اسـتازی او دهغـوی د ملاتـړ څخه برخمن نه و، په ورته توګه افغانستان باندې تپل شوې اداره هـم د افغـان ولس استازې او د ملاتړ څخه برخمنه اداره نه ده، څنګـه چـې پـه ويتنـام کـې داشغال پرمهال د ويتنام د جغرافيې زياته سلنه دازادې غوښتونکو په لاس کې وه، هغسـې افغانسـتان کـې د امريکـايي اشـغال پـه موجوديـت کـې دهيـواد دجغرافيې زياته برخه د افغانستان د اسلامي امارت ترحاکميت اونفوذ لاندې

ده، څنګه چې د امریکا دننه دویتنام جګړې پخلاف خلکو لاریونونه کول او د ویتنام څخه یې د پوځونو دویستو غوښتنه کوله نن هم د امریکا دننه دامریکایانو زیاته سلنه د جګړې د دوام مخالفت کوي او ژر تر ژره د خپلو پوځیانو دبیرته ورستنیدو غوښتنه کوي.

## یوه بله نکته!

درنو ملګرو! دلته یوه بله نکته هم د پام وړده، هغه دا چې امریکا او نړیوال باید دا وفهموي چې د افغانستان معروضي حالات د نورې نړۍ سره څه چې د اسلامي هیوادونو د سیاسي حالاتو او د هغوی د ژوندانه د اسلوب سره هم توپیرلري، زکه دلته شلویښت کلنې جګړې افغانستان او افغانان د بېلابېلو ستونزو او مشکلاتو له زغملو سره روږدي کړي دي که امریکا په دې تمه وې چې د فشارونو اویا جګړې په غځولو سره به افغانان نور د مقاومت زغم اویا حوصله ونلري او په مقابل کې به یې دوی بری ترلاسه کړای شي دا د افغانستان او افغانانو د میړانې تاریخ نه د دوی ناخبرې ښیي نو زموږ مشوره دا ده چې د افغانانو تاریخ دې له سره بیا ولولي.

## که امریکا امن غواړي!

بله داچې که واقعاً نړیوال په افغانستان اوسیمه کې امنیت غواړي، یا په بل تعبیرکه امریکا اونړیوالو ته په افغانستان او ټوله منطقه کې امنیت ارزښت ولري او یا د ثبات او ټیکاوه سره علاقمندي و لري نو بیا دې دکوم ځنډ پرته امریکا د دوحې تړون د ژمنو سره سم د روان ۲۰۲۱ زکال د مې میاشتې تر پایه خپل ټول پوځیان وباسي او د افغان ولس د ناپیيلې ازادۍ، خپلواکې ارادې او استقلال ترلاسه کولو احترام دې وکړي.

## د افغانستان کنټرولولو صلاحیت کوم جهت لري؟

داچې افغانان د اشغال د پای وروسته د نورو ناخوالو او نادودو په کوم بل ګرادب کې کینوزي افغانستان کې یو داسې کامیاب اوپیاوړي حکومت ته اړتیا ده چې هغه د افغان ولس د دین، فکر اوعقیدې نه د دفاع کولو ترڅنګ دافغانستان ملي خپلواکۍ او استقلال ساتلو ته هم ژمنتیا ولري هغه د افغاني پرګنو دعنعناتو اوملي ارزښتونو ته په احترام د افغانستان دننه د ملي وحدت د رامنځته کولو او د افغانستان دارضي تمامیت ساتلو اهلیت، صلاحیت او قابلیت ولري اوس پوښتنه داده چې دومره اهلیت، صلاحیت او قابلیت څوک لري؟ ښکاره ده چې هم هغه جهت یا لوری به د دې وړتیا، اهلیت، صلاحیت او قابلیت ولري کوم لوري چې په دوحه کې له امریکا سره د سولې هوکړه لاسلیک کړه، کوم چې پخپلو پریکړو کولوکې پوره خپلواک، ازاد او د افغان ولس د قاطع اکثریت د ملاتړ څخه برخمن دی، کوم لوری چې د دوحې هوکړه لیک کې دکړو ژمنو د پوره پلي کولو صلاحیت لري. نو اړتیاده چې نړیوال او امریکا دا واقعیتونه په پام کې ونیسي اود دوحې تړون د ژمنو په عملي کولوکې د لیت ولعل څخه کار وانخلي او په دې دي ژور غور او سوچ وکړي چې د دغه ډول علني ژمنو څخه تیښته، یا په اړه یې نړۍ ته دوکه ورکول به نړۍ ته کوم ډول پیغام ولیږدوي؟ د دې لپاره چې د نړۍ په هره برخه کې د امن او سولې لپاره کیدونکي کوښښونه رنګ راوړي اوپه نړۍ کې د خلکو د باور او اعتبار وړ وګرځي، د امریکا نوی حکومت دې د مې میاشتې ترپایه له افغانستان څخه د پوځونو ویستلو په لړکې د امریکاد پخواني دولت کړې ژمنې عملي کړي او هغو ټولو تعاهداتو اوژمنوته دې وفادار پاته شي په کومو باندې چې دکب د لسمې نیټې په ورځ د امضاشوي هوکړه لیک په متن کې د افغانستان اسلامي امارت او د امریکا د متحده ایالاتو ترمنځ توافق راغلی دی، زکه چې د پوځونو ویستل دشل کلنې بدمرغه جګړې په بل

اورباندې د اوبو شیندلو مترادف عمل دی او نه ویستل یې د شل کلنې جګړې په اورباندې د تیلو اچولو مترادف عمل دی موږ وایو امریکا دې په پوره هوښیارۍ سره د سولې او د جګړې د پای ته رسولو لپاره معقوله لاره غوره کړي، په پای کې که امریکایان د دوحې تړون لغوه کړې او د جګړې د دوام لاره اختیارکړې نو ورته د هیواد د لوی شاعر په ژبه وایم:

شکونه هیڅ ندي پکار په دریابي خاموشۍ
سمندر تل کې توپانونه تل ژوندي ساتي
دا زادۍ په شیرینۍ شیندې د وینو برسات
ناکار چې هرڅه کوي مینه فرهادي ساتي

له توجه څخه مو نړۍ مننه

* * *

## د دوحې تړون
## او د جنګ پر جريان د امريکايي جنرالانو ټينګار!

قاري محمد يونس راشد

ليکوال او د سياسي چارو شنونکی

دا خبره به ان شاء الله مبالغه نه وي چې د اسلامي امارت مشران د الله تعالی وليان وو او دي، شهيد مولوي احسان الله احسان صاحب داسې دعاء کړې وه: يا الله څنګه چې دې شوروي اتحاد د قهرمانو افغانانو په لاس ټوټه ټوټه کړ؛ داسې امريکا هم د قهرمانو افغانانو په لاس ټوټه ټوټه کړه!

شهيد مولوي احسان الله احسان صاحب دا دعاء داسې مهال کړې وه چې حالاتو ته په کتو چا له امريکا سره د افغانستان د جګړې تصور هم نسواى کولاى، خو پر هر څه قادر او حکيم ذات جل جلاله د خپل ولي دا دعاء قبوله کړه او داسې شرايط يې رامنځته کړل چې امريکا پر افغانستان له يرغل وروسته دلته داسې ښکېله کړې چې د ځان د خلاصون لاره ورڅخه ورکه کړې.

د الله تعالی په نصرت د اسلامي امارت د زمريانو په لاس د امريکايي فوځ پرلپسې شکستونو د امريکايي دولت په منځ کې انشقاق را منځته کړ او عملاً امريکايي جنرالانو له خپل دولت سره ټکر وکړ، سره له دې چې امريکايي استخباراتو ډېرکوښښ وکړ دغه انشقاق او ټکر له نړۍ پټ کړي او لکه نور شيطاني پلانونه يې دغه رسوايي هم له خلکو پټه کړي؛ خو د امريکايي دولت او فوځي جنرالانو ترمنځ د اختلافاتو پراختيا او د امريکايي

حکومت د سخت مجبوریت په نتیجه کې د دوحې تاریخي تړون تر سره کېدو نور دا اختلاف ښکاره کړ.

## د امریکايي دولت او جنرالانو تر منځ د اختلاف اسباب او دلائل:

امریکايي دولت چې په خپل فوځ، پرمختللیو نظامي آلاتو اوکمپیوټري ټکنالوژۍ مغرور و؛ په افغانستان کې پرلپسې شکستونو سربدال کړ او نه پوهېده چې د څوکمزورو طالبانو په وړاندې ولې د دوی باتجربه او مسلکي فوځ ماتې خوري؟

څرنګه چې په افغانستان کې دکابل ادارې د رهبرۍ، نظامي او ملکي چارو په شمول د ټولو مصارفو او عملیاتو مطلق واک امریکايي جنرالانو ته سپارل سوی و، نو امریکايي دولت د شکست د نورو علتونو تر څنګ له خپلو جنرالانو سره محاسبه لازمه وبلل.

امریکايي دولت په ۲۰۰۸ کال کې دکانګرس په مرسته د سیګار په نامه د افغانستان د بیا رغونې په اړه د امریکا د حکومت د څار مخکښه اداره جوړه کړه او په افغانستان کې یې د خپلو جنرالانو دکار او لګښتونو په اړه پلټنې پیل کړې، د سیګار له تفتیش وروسته امریکايي حکومت ته معلومه سوه چې د افغان جګړې په پوښ کې غلو جنرالانو د خپل ملت وینې په څومره بېرحمۍ زبېښلې او لا نور غواړي دغه جنایت ته دوام ورکړي، د امریکايي فوځ د ژر را ایستلو په چاره کې اوباما او له ده وروسته تر دریوکلنو پورې ټرمپ ځکه بریالی نه و، چې د غلا له دغو پیسو څخه د جنرالانو تر څنګ د حکومت او کانګرس ځیني لوړ پوړي چارواکي هم تغذیه کېدل او هغوی د دې چارې مخنیوی کاوه، د فساد یوه بېلګه چې په مطبوعاتوکې یې ډېر جوړ کړ په جوزجان ولایت کې دګازو د یوه سټېشن په اړه د سیګار راپور و، د سیګار په راپورکې راغلي و: امریکايي عسکرو د افغانستان شمال جوزجان ولایت کې

دګازو په پمپ سټېشن باندي ۴۳ میلیونه امریکایي ډالر خرڅ کړي، حال دا چي دغسي سټېشن په پاکستان کي په نیم میلیون ډالرو جوړېدای سي، سیګار زیاتوي چي د دغه پمپ سټېشن کار د ۲۰۱۱ میلادي کال د اګست په میاشت کي پیل شوی وو او په ۲۰۱۲ کال یي کار بشپړ شو، دغه سټېشن له پوره یوه کال فعالیت وروسته له کاره لوېدلی، خو اوس له دغه پمپ سټېشن څخه نه کار اخیستل کیږي او نه یې په اړه څوک معلومات لري، امریکایي جنرالانوکه خپل فساد په دغسي پروژوکي نه وای پټ کړي؛ دکاله د ۴۵ میلیارده ډالرو چي د میاشتي ۳۷۵۰ میلیونه ډالره کیږي د مصرف حساب به یې نو په څه شي پوره کولای؟

د سیګار له تفتیش وروسته د امریکایي اشغالګرو ځواکونو د را ایستلو په اړه بحث او اراده د بارک اوباما په حکومت کي را پیدا سوه او دغه اراده د اوباما په دواړو دوروکي موجوده وه او هر وخت به لوړ پوړو امریکایي چارواکو په دې اړه څرګندوني کولې مګر د امریکایي دولت د نوي تصمیم په وړاندي امریکایي جنرالان ودرېدل او اوباما یې پدې اړه قاطع تصمیم ته پرېنښود، فقط د ځواکونوکمولو ژمنه یې عملي کړای سوه، د اوباما په حکومت اوکانګرس کي د جګړه خوښو چارواکو او وکیلانو نفوذ او قوت امریکایي جنرالانو ته دا زمینه مساعده کړه تر څو د ځواکونو د راستنولو په اړه د اوباما او دده د همنظرو چارواکو اراده وننګوي او تصامیم یې عملي بڼه غوره نکړي.

## د ټرمپ د نظر بدلون او نوې ستراتېژي:

ډونالډ ټرمپ چي د ۲۰۱۷م کال د جنوري پر شلمه یې د امریکا د پنځه څلوېښتم ولسمشر په توګه لوړه وکړه؛ له لومړیو یې دا هڅه کوله چي د افغانستان له جګړې ځان راټول کړي او هلته د بې نتیجې جګړې له امله د زرګونو میلیونو ډالرو د بېځایه مصرف مخه ونیسي، څرنګه چي د ټرمپ په

نظر د افغانستان جګړه یوه نه ګټل کېدونکې جګړه وه؛ نو باید د عسکرو او پیسو بې ګټې تلف کېدو ته د پای ټکی کېښېښودل سي، مګر اشغال پلوو امریکایي جنرالانو او د جمهوریپال سناتور جان مکین په شان متعصبوکسانو ټرمپ په دې قانع کړ چي د افغانستان جګړه د ځینو محدودیتونو او ستونزو له امله نه ګټل کیږي، که چیري په افغانستان کي امریکایي جنرالانو ته د نظامي عملیاتو غیر محدود اختیارات او وسائل ورکړل شي نو امریکایي فوځ به دا جګړه حتماً ګټي او د جګړې ګټلو په صورت کي، په افغانستان کي د درې زره میلیاردو ډالرو په ارزښت د معادنو په استخراج سره به امریکا خپل ټول مالي زیانونه جبران کړي، ټرمپ د یوه شتمن په توګه چي له مصارفوکرکه لري او ګټې ته لېونی وي؛ په همدې طمع په پټو سترګو د دوی طرحه ومنله او ښېله دې چي د بوش او اوباما له ناکامو جګړه ایزو پالیسیو عبرت واخلي د ۲۰۱۷ کال د اګست په ۲۲ نېټه د افغانستان او جنوبي آسیا لپاره خپله ستراتېژي اعلان کړه، د ستراتېژۍ اساسي ټکي یې دا وو چي موږ به د افغانستان جګړه خامخا ګټو او هلته به زموږ شتون له حالاتو سره اړه ولري، ده زیاته کړه چي « تر هغه به افغانستان کي امریکایي ځواکونه جګړه کوي چي ویې ګټي او تر هغه به له وسله والو طالبانو سره جنګ کوي چي مات یې کړي».

## د ټرمپ د ستراتېژۍ ناکامي او له امریکایي جنرالانو سره یې ټکر:

په افغانستان کي د ناټو قومندان جنرال جان نېکولسن چي د ټرمپ د ستراتېژۍ پلي کوونکی و؛ د زرګونو تازه دمو امریکایي عسکرو، هر ډول وسائلو او نامحدودو اختیاراتو په تر لاسه کولو سره د خپلو بې ننګو افغان ګوډاګیانو په ملتیا د افغانستان خاوره پر مظلومو افغانانو سره تبۍ کړه او زرګونه مظلوم افغانان یې د چاپو، بې رحمه بمباریو او نورو وحشتونو په ترځ کي په شهادت ورسول، اشغالګرو جنرالانو او د دوی مزدورانو فکرکاوه چي په دغو وحشتونو سره به مؤمن ولس دګران هیواد د ازادۍ او اسلامي نظام د

قیام له هوډ څخه را وګرځوي او دوی ته به تسلیم شي خو له شاوخوا دووکالو وحشتونو وروسته چي کومي نتیجې ته و نه رسېدل د ټرمپ لخوا امریکایي جنرالان له سپکاوي او سخت چلند سره مخامخ شول، دوی ټرمپ ته ټېر ډېولی وو چي په لنډه موده کي به د طالبانو څخه ټولي سیمي نیسي او د افغانستان د ۳ تریلیون ډالري کانونو استخراج او چور ته به زمینه مساعدوي، ټرمپ پوه سو چي دی تېر ایستل سوی، د ناکامو جنرالانو د مشورو منلو پر ځای باید خپل اصلي دریځ (له افغانستان څخه د امریکایي عسکرو ایستل) تعقیب کړي او د ده په حکومت کي هغه کسان چي ده ته یې د جګړه ایزي ستراتېژۍ مشوره ورکړې وه او یا یې اوس هم د اشغال پر دوام او جګړې ټینګارکاوه باید له حکومته وشړل سي، د ملي امنیت سلاکار مک ماسټر چي د جنوبي اسیا د ستراتېژۍ اصلي طراح و؛ د ستراتېژۍ له ناکامۍ وروسته یې له دندي وشاړه، له ده وروسته یې جان بولټن چي د افغان جګړې د ختمولو او امریکایي فوځیانوکور ته ستنولو مخالف و، هم له دندي لېري کړ، جنرال نیکولسن یې د ناټو له قوماندانۍ برطرفه کړ او د دفاع وزیر جنرال متیس یې په ډېر سپکاوي له کاره وشاړه، ټرمپ له خپلو جنرالانو د شکایت په توګه څرګنده کړه: « ما خپلو جنرالانو ته ټولي هغه پیسې ورکړې چي دوی غوښتلې، خو هغوی افغانستان کي هغسي سترکار چې تمه یې کیده ونه کړ، متیس ته مي یوکال ۷۰۰ ملیارد ډالر ورکړل بل کال مي اوه سوه شپاړس ملیارد ډالر، جنرال متېس ډېره مننه وکړه، مګر هغه افغان دنده کي ډېر ښه نه وو، څنګه چي اوباما له دندي لیري کړ؛ ما هم لیري کړ. »

ټرمپ د جنګ غوښتونکو لوړپوړو نظامي چارواکو او مقتدرو جنرالانو په شړلو سره هغه قوي طلسم مات کړ چي د اشغال له پیله یې پر سپیني ماڼۍ راج چلیده او د افغانستان د اشغال دوام او امریکا په دغه ناپایه جګړه کي ښکېله ساتل یې اهداف وه.

## د امریکا او اسلامي امارت مذاکرات او د جنرالانو مزاحمت:

ټرمپ که څه هم له خپل حکومت څخه ټول هغه چارواکي چې د امریکا او طالبانو تر منځ د مذاکراتو او توافق مخالفین وو لیري کړل؛ خو د جګړې په ډګرکي مسئول جنرالان او په فوځ کي د دوی متحدین او حامیان چې له لویه سره یې له سولي سره دښمني او د جګړې دوام هدف دی؛ لـه خپلو هڅو پـه شا نسول، له مذاکراتو پیلېدو مخکي او د مذاکراتو په جریان کي یې تل داسي څرګندوني کولې چې له افغانستانه د ټولو امریکایي عسکرو وتـل یـې ناشـوني او د امریکایي ګټو په تاوان باله او هڅه یې کوله چې ټرمپ له خپل هوډ څخه را وګرځوي، د مذاکراتو په جریان کـي د عملیـاتو لـه تشـدید او بېګنـاه ملکـي وګړو ته د سر او مال د درنو زیانونو اړولو څخه یې هدف دا و، چـي اسـلامي امارت د مذاکراتو لغوه کولو ته مجبور کړي مګر د اسلامي امارت مشرانو چي له امریکایي مذاکراتي ټیم سره یې له نژدې د امریکا رسمي پالیسـي څارلـه او د جنرالانو په ورانکارۍ او بد نیت پوه وو؛ مذاکراتو تـه دوام ورکـړ، ددې تـر څنګ یې له امریکایي اشغالګرو ځواکونو د مظلومو افغانانو د انتقام اخیستلو له عملیاتو هم دریغ ونکـړ، امریکـایي جنرالانـو د دوی د بـې دریغـه بمبـاریو، چاپو او وحشتونو په مقابـل کـي د اسـلامي امـارت ځـوابي عملیـات، پداسـي حال کي چي دوی شپه او ورځ خپلو مظالمو ته دوام ورکـړی وو؛ د سـولي لـه مذاکرتو سره متناقض بلل او د امریکایي مشرانو د نظر اړولو او مذاکراتو لغوه کولو لپاره یې تبلیغاتي استفاده ورڅخه کوله چي یو ځل یې دغه پـلان بریـالی هم سو او ټرمپ یې د مذاکراتو لغوه کولو ته قانع کړ، مګر ټرمپ ډېـر ژر بیرتـه متوجه سو او د مذاکراتو د جریان لپاره یې خپل هیئت دوحـې تـه واسـتاوه تـر څو له اسلامي امارت سره مذاکرات نهایي او توافقنامه لاسلیک کړي.

د امریکایي دولت او جنرالانو تر منځ اختلاف داسي حالـت رسـېدلی و، چي نـړۍ تـه یـې د امریکـا دوه بېـل بېـل مخونـه ښـودل، نړیـوال څـارونکي د

امریکايي دولت او امریکايي جنرالانو جلا جلا دریځونو اوکړنو حیران کړي وو چي میدان به د امریکايي حکومت دیپلوماسي یوسي اوکه د جنرالانو د جګړې د دوام پالیسي؟

بالاخره ټرمپ په یوه جسورانه اقدام سره خپل مذاکراتي ټیم ته اجازه ورکړه تر څو له اسلامي امارت سره تړون لاسلیک کړي.

## کوم لوری له توافقنامې سرغړوني کوي؟

د امریکا د متحده ایالاتو او د افغانستان د اسلامي امارت تر منځ د توافقنامې له لاسلیک وروسته مظلوم اولس د آرام ساه واخیسته او له شپنیو چاپو، بمباریو او نورو وحشتونو تر ډېره بېغمه سو، مګر پدې وروستیوکي له توافقنامې د امریکايي فوځ یو شمېر سرغړونو ولس ته اندېښنې پیدا کړي چي هسي نه امریکا پر خپلو ژمنو و نه درېږي او یو ځل بیا اشغال او وحشتونو ته دوام ورکړي!؟ د چارو د ځینوکتونکو په نظر ښايي دا د امریکا د حکومت رسمي پالیسي وي او ممکن له طالبانو سره پر شوي توافق پښېمانه وي خو زما په نظر اوسنیو حالاتو ته په تناظر د امریکا رسمي پالیسي دا ایجابوي چي توافقنامه بشپړه پلې او امریکا د افغانستان له جنګه ځان بېغمه کړي، له توافقنامې سرغړوني د امریکايي جنرالانو خپلسري او د سولي په وړاندي ددوی د پخواني مزاحمت دوام ګڼم چي د امریکايي حکومت له خوښي پرته تر سره کیږي.

## کابل اداره د چا په لاس لوبیږي؛ د امریکايي حکومت که امریکايي جنرالانو؟

د اشغال له پیله کابل اداره د ناټو/امریکايي ځواکونو د عمومي قوماندان له لوري کنټرولیږي او امریکايي سفیر ډېرکم په اجرايي چاروکې دخالت کولای شي، امریکايي جنرالانو تل د خپلو افغان ګوډاګیانو په څېره کي له

امریکايي حکومت سره د خپلې ګټې په تناظر تعامل کړی او په افغانستان کې یې د اوږدې مودې لپاره جګړې ته لاره هواره کړې ده، اوسنیو حالاتو دغه حقیقت لا ښکاره کړ او د توافقنامې د عملي کولو پر وړاندې د امریکايي جنرالانو مزاحمت دکابل ادارې د مشر اشرف غني په رنګ کې تبارز وکړ، د بندیانو د تبادلې مخنیوی چې کابل اداره یې ظاهراً مسئوله بلل کېده د همدې ځنځیر یوه کړۍ ده چې دکابل ادارې د مستقل ښودلو له یوې بې معنی نندارې پرته نور څه نه وو.

## ناکام (جنرالان) څومره د سولې پروسه سبوتاژکولای شي؟

د امریکايي جنرالانو ښکاره فساد، په جګړه کې د لاسته راوړنو نه درلودل، د جګړې نامعلوم برخلیک او ملا ماتوونکي مصارف هغه عوامل دي چې امریکايي سیاستوال، د حکومت غړي، وکیلان او په ټوله کې امریکايي ولس یې د افغانستان اشغال پای ته رسولو اوکور ته د عسکرو ورستنولو په برخه کې جدي کړي دي، د ټرمپ لخوا د جنګ خوښو چارواکو د جبهې ماتول او په امریکايي مطبوعاتوکې د فوځي جنرالانو د ناکامۍ، فساد او درواغ ویلو په اړه د مسلسو راپورونو خپرول هغه اقدامات وو چې د امریکا حکومت ته یې له اسلامي امارت سره د مذاکراتو او توافق چانس او صلاحیت ورکړ او د توافقنامې په لاسلیک سره یې دغه ستونزمن بهیر بشپړ کړ.

اوس چې د امریکا د متحده ایالاتو او اسلامي امارت تر منځ توافقنامه لاسلیک شوې؛ د جګړې په ډګرکې د امریکايي جنرالانو سرغړوني او مزاحمت عارضي ستونزې جوړولای شي خو اساساً د اشغالګرو ځواکونو د اخراج مخنیوی او د سولې پروسې له منځه وړل یې له لاسه وتلي دي، له دغه وضعیت سره د اسلامي امارت له بصیرته ډک چلند هغه شر اچوونکي، د ولس په وینو تغذیه کېدونکي او فطرتاً اجیرګوډاګیان سخت ناهیلي کړي چې

غواړي د اسلامي امارت او امریکا تر منځ لاسلیک شوې د ازادۍ توافقنامه ماته او یو ځل بیا د اشغال په دوام سره دوی ته د ولس د دربدرۍ، وینې تویيدني او د هیواد د بربادۍ موقع په لاس ورسي.

د امریکا اوسنیو سیاسي او اقتصادي شرایطو ته په کتلو سره د سکاټ مېلر غوندي جنرالانو تشي لاپي او خپلوکوډاګیانو ته د مورال ورکولو هڅې هیڅ اهمیت نلري او نه د سولي پر روانه پروسه اساسي اغېزکولای سي، کابل اداره که د سکاټ مېلر په اشاره دګډوګډو پر اساس د توافقنامې دګام پرګام عملي کولو چاره ټکنۍ کولای سي؛ ولس هم د اشغالګرو تر بشپړ وتلو پوري صبرکولای سي! د هیواد د ازادۍ، سولي او د یوه پرمختللي اسلامي نظام درلودونکي افغانستان لپاره باید ولس زغم ولري او د دغه ستر هدف لاسته راوړلو لپاره باید د عارضي ستونزو له امله تشویش ونکړي، د اسلامي امارت مدبر مشران وضعیت له نژدې څاري او لیري نه ده چي الله تعالی مو د خپل نصرت، بېدریغه قربانیو او د مشرانو د اخلاص په برکت د یوه خپلواک اسلامي نظام خاوندان کړي. ان شاء الله تعالی. و ماذلک علی الله بعزیز

❊ ❊ ❊

## د دوحې تړون د نقض او عملي کیدو ترمنځ

عبدالرحیم (ثاقب) لیکوال او سیاسي شنونکی

د امریکا د متحده ایالاتو د نوي منتخب ولسمشرله ټاکنې سره سم هم د امریکا په دننه او هم له هغې نه بهر د ځینو خاصوکړیو لخوا د دوحې تړون د بیا کتنې غوښتنې راپورته کړل شوې.

پر دې چې د دوحې تړون بیاکتنه د چا لخوا اوکومو موخو لپاره ترسره کیږي وروسته خبره کوو، په پیل کې غواړو د تړون مواد او د اړونده لوریو خوا د هغو د عملي کیدو پرکچې لیږ مکث وکړو.

### په تړون کې اساسي مواد څه دي؟

### د امریکایانو پر ذمه:

۱- له افغانستان څخه د ټولو امریکایي او د هغوی د متحدینو پوځي ځواکونو وتل.

۲- په دوو مرحلوکې د ټولو طالب زندانیانو خلاصون.

۳- له تورلیست نه د اسلامي امارت د چارواکو د نومونو حذفول.

۴- د افغانستان ځمکنۍ بشپړتیا په رسمیت پیژندل او د هغه په کورنیو چاروکې د امریکا او د متحدینو مداخله نه کول.

## د إسلامي امارت پر ذمه:

۱- اسلامي امارت به د ځان په شمول هیڅ ډلې او یا فرد ته اجازه نه ورکوي چې د افغانستان له خاورې څخه د متحده ایالتونو او د هغوی د متحدینو امنیت وګواښي.

۲- إسلامي امارت به ښکاره پیغام خپروي چې دوی به نه له هغه چاسره مرسته کوي چې امریکا او د هغوی متحدینو ته ګواښ پیښوي او نه به هغوی ته په افغانستان کې ځای ورکوي.

۳- إسلامي امارت به په تړون کې د شویو ژمنو مطابق په افغانستان کې د امریکا او د هغوی د متحدینو د امنیت له ګواښلو څخه د هرې ډلې یا فرد مخنیوی کوي، او د نظامي فعالیتونو تر سره کولو لپاره به یې کوربه توب نه کوي.

۴- إسلامي امارت به له هر هغه چا سره چې په افغانستان کې پناه اخلي یا د استوګنې غوښتنه کوي، د مهاجرت د نړیوالو قوانینو او په تړون کې د شویو ژمنو سره سم چلندکوي، او هغو بهرنیانو ته به کوم چې د امریکا او د هغوی د متحدینو امنیت ګواښي، افغانستان ته د ورننوتلو لپاره ویزه، پاسپورټ، او نور قانوني اسناد نه ورکوي.

د پورتنیو موادو عملي کول د تړون پر داړو لوریو یوشان الزامیت لري.

راځئ وګورو چې هر لوري خپله برخه څومره عملي کړې؟

## امریکایي لوری:

د تړون په متن کې په وضاحت سره ویل شوي چې د تړون له اعلان سره سم به په څوارلسو (۱۴) میاشتوکې امریکایان خپل ټول ځواکونه له افغانستان څخه باسي.

چې په دې برخه کې امریکایانو له خپل لوري د ورکړل شویو اعلاناتو له مخې له څو اډو څخه خپل پوځیان ایستلي او د دوي د احصائیو له مخې فعلا په افغانستان کې د امریکایي ځواکونو شمیر (۲۵۰۰) تنه دی.

په تړون کې د شوې ژمنې له مخې دکابل ادارې له زندانونو څخه د امریکایانو په دستور ۵۰۰۰ طالب زندانیانو خوشي کړل شول.

## د اسلامي امارت لوری:

اسلامي امارت هم د خپلې ژمنې مطابق لاندې اجراآت ترسره کړي:

د تړون له لاسلیک کیدو سره سم یې پر امریکایي اډو او د اډو د تخلیې پر مهال پر امریکایي وسائطو او پرسونلو باندې پوځي عملیات متوقف کړل.

په تړون کې له شوې ژمنې سره مطابق یې (۱۰۰۰) دکابل ادارې اسیران له بنده خلاص کړل.

له بین الافغاني جهتونو سره یې بین الافغاني مذاکرات پیل کړل.

دکابل ادارې د ځواکونو پر خلاف یې دکلنیو پوځي عملیاتو اعلانول متوقف او پر لویو ښارونو یې د سترو تهاجمي بریدونوکچه محدوده کړه.

## جنجال پر څه دی؟

اوس چې د تړون پر لاسلیک کیدو پوره یوکال تیریږي د اسلامي امارت او امریکایي لوري ترمنځ د تړون د موادو د عملي کیدو او نه عملي کیدو پر سر جنجال راپورته شوې او دواړه لوري یو بل په بشړ ډول د تړون په نه عملي کولو تورنوي.

اسلامي امارت وایې چې امریکایي لوري د تړون د متن په لومړۍ برخې کې په لاندې ډول ژمنه کړې:

د: د بین الافغاني مذاکراتو له پیل سره به متحده ایالتونه د افغانستان اسلامي امارت، چې متحده ایالتونه یې د دولت په توګه نه پیژني او د طالبانو په نوم یې پیژني، د غړو په خلاف د متحده ایالتونو د اوسنیو بندیزونو او د جایزې لیست د اداري بیا کتنې بهیر په دې هدف پیل کړي چې دغه بندیزونه به د ۸/محرم/۱۴۴۲هـ ق – ۲۵/اسد/۱۳۹۹هـ ش – ۱۵/اګست/۲۰۲۰م تاریخ پورې لرې کړي.

هـ: د بین الافغاني مذاکراتو له پیل سره به متحده ایالتونه د ملګرو ملتونو د امنیت شورى له نورو غړو او افغانستان سره په دې هدف دیپلوماتیکې هڅې پیل کړي چې د ۲۴/رمضان/۱۴۴۱هـ ق – ۲۸/ثور/۱۳۹۹ هـ ش – ۱۷/مى/۲۰۲۰م تاریخ پورې د بندیزونو له نوملړ څخه د افغانستان اسلامي امارت، چې متحده ایالتونه یې د دولت په توګه نه پیژني او د طالبانو په نوم یې پیژني، د غړو نومونه وایستل شي)).

خو اوس چې پر دې تاریخ نیږدې نهه میاشتې تیرې شوې نه د اسلامي امارت پر غړیو د امریکا لخوا لګیدلي بندیزونه رفع شوي او نه یي هم نومونه د ملګرو ملتونو د امنیت شورى له تورلیست څخه ایستل شوي او نه هم د اسلامي امارت نور هغه (۷۰۰۰) بندیان خلاص شوي چې په تړون کې یې د امریکایانو لخوا د خلاصولو ژمنه شوې.

امریکایي لورى ادعاء لري چې د تړون د ضمائمو شپږمه ماده صراحت لري چې دواړه لوري (اسلامي امارت- کابل اداره) به کوښښ کوي چې په تدریجي ډول به په اصطلاح تاوتریخوالى تدریجا راکموي.

۶- د دې موافقتنامې تر لاسلیک وروسته به دواړه خواوې کوښښ کوي چې د سرتاسري سولې د راتلو په خاطر په تدریج سره تاوتریخوالى راکم کړي،

او د ملکیانو ساتنې ته به خاصه توجه کوي. دواړه جهتونه به کوښښ کوي چې په ټول افغانستان کې د بریدونو شمیر زیات نه کړي.))

خو د بین الافغاني مذاکراتو تر لومړي پړاو پیلیدو وروسته لیدل کیږي چې په افغانستان کې تاوتریخوالی زیات شوی چې له امله یې هره ورځ د هیواد په لویو ښارونو په تیره کابل ښارکې په لسګونوکسانو ته مرګ ژوبله اوړي.

د ملګرو ملتونو د وروستي رپوټ له مخې په تیرکال کې د افغانستان په بیلابیلو سیموکې خواو شا دری زره کسان مړه او په زرګونو نور ژوبل شوی.

دا ملکي تلفات د هوایي بریدونو، پر ولسي سیمو د هوانونو او توغندیو توغولو، ماینونو، تهاجمي بریدونو او هدفي وژنو په ترڅ کې تر سره شوي.

که څه هم چې د ملګرو ملتونو په راپورکې په غرضي ډول اسلامي امارت د ۴۵ سلنې ملکي تلفاتو مسؤل ګڼل شوی خوکه په واقعبینانه توګه هغه خونړۍ پیښې وڅیړل شي چې د یادو تلفاتو لامل شوی بیا به څرګنده به شي چې د هغوی اساسي لامل امریکایي ځواکونه دي اوکه اسلامي امارت؟

## د تاوتریخوالي ډیری پیښې چیرته شوې؟

که د دوحې تړون تر لاسلیکیدو وروسته د تاوتریخوالي د زیاتیدو پیښو ته وکتل شي نو تر ټولو ډیرې هغه یې په کابل ښارکې شوي کوم چې ډیره ساحه یې تر دولتي واکمني لاندې او د امنیت ساتلو په نوم ورکې تر ټولو ډیر زیات بهرني پوځیا ن همدله ځای پر ځای دي.

غواړو په کابل ښارکې د تاوتریخوالي د زیاتوب ځیني مهمې پیښې یې د بیلګې په ډول دلته یادې کړو.

د ۱۳۹۹ کال د ثور د میاشتې په ۲۳ نیټه دکابل د دشتي برچي پر ښځینه روغتون برید چې خواو شا (۴۵) تنه ورکې ووژل شول.

د ۱۳۹۹ کال د جوزا پر ۱۳ د وزیر اکبرخان جامع مسجد پر امام انفجاري برید.

د ۱۳۹۹ کال د جوزا پر ۲۳ د شیر شاه سوري جامع مسجد پر امام مولوی عزیزالله مفلح انفجاری برید چې له امله (۱۱) کسانو ته مرګ ژوبله ورسیده.

د ۱۳۹۹ کال اسد د میاشتې پر ۲۸ نیټه پرکابل ښار د ۱۲ میزایلو لومړی راکیټي برید ترسره شو چې له امله یې ۱۱ تنه ژوبل شول.

د ۱۳۹۹ کال د اسد په ۲۹ نیټه د سولې پر یوه پلوي عبدالباقي امین انفجاري برید.

د ۱۳۹۹ کال د عقرب پر ۱۷ نیټه د یما سیاوش پر لیږدونکي موټر انفجاري برید چې له امله یې د سیاوش په شمول دری کسان ووژل شول.

د ۱۳۹۹ کال د عقرب د میاشتې په ۳ نیټه پرکوثر دانش کورس خونړی برید چې له امله (۷۵) مړه او ژوبل شول.

د ۱۳۹۹ کال د عقرب د میاشتې په ۱۲ پرکابل پوهنتون خونړی برید چې په ترڅ کې یې (۳۰) کسانو ته مرګ ژوبه واوښتله.

د ۱۳۹۹ کال د قوس د میاشتې په لومړۍ نیټه پرکابل ښار د ۲۳ میزایلو دوهم توغندویي برید وشو چې له امله یې (۴۰) کسانو ته مرګ ژوبله واوښتله.

د ۱۳۹۹ کال د جدی د میاشتې پر دریمه د آزادو انتخاباتو د ټولنې پر مشر یوسف رشید انفجاري برید.

د ۱۳۹۹ کال د دلوې د میاشتې په ۱۷ د جمعیت اصلاح پر مشر محمد عاطف انفجاري برید وشو.

د ۱۳۹۹ د دلوې په ۳۰ نیټې دکابل پوهنتون پر استاد مبشر مسلمار انفجاري برید وشو.

ولي په کابل ښارکې د تاوتریخوالي زیاتوالی.

سره له دې چې کابل د هیواد د پلازمینې په توګه هغه ښار دی چې د ټول هیواد په نسبت یې ډیره برخه دکابل د ادارې تر واکمنې لاندې ده او همدا راز تر ټولو ډیر زیات بهرني ځواکونه همدلته میشت دي خوا بیا هم لیدل کیږي چې د ټول هیواد په کچه کابل ښار تر ټولو ناامن او د تاوتریخوالي ډیر واقعات دلته پیښیږي.

او د تاوتریخوالي د پیښوګراپ دقیقا هغه مهال تر ټولو لوړې کچې ته هسک شو چې کله امرالله صالح دکابل ښار امنیت دنده پر غاړه واخیستله.

په کابل کې د سختو امنیتي تدابیرو تر څنګ د یاد ښار په واټونو او همداراز د هغه په لویشت، لویشت ساحه کې د ښار او مراقبت داسې کامرې نصب دي چې د هر سړي یو ډیرعادي حرکت هم کشفولای شي مګر د دې هرڅه باوجود نیږدې هره ورځ یاد ښار د دوو او دریو بمي چاودنو او امنیتي پیښو شاهد وي.

په کابل ښارکې ډیری پخواني امنیتي افسران، د پارلمان وکیلان او حتی عام کابل ښاریان په دغو ورځنیو پیښوکې دولت په تیره امرالله صالح ښکیل ګڼي.

او د ښکیلتیا لامل یې هم دا ګڼي چې څرنګه چې کابل ښار د ټول افغانستان په سطحه هغه سیمه ده چې اکثریت نړیوالې رسنۍ دلته شتون لري او د تاوتریخوالي هره پیښه په هماغه لحظه کې ټولې نړۍ ته منعکسوي.

داچې د دوحې تړون له مخې د می د میاشتې په را رسیدو سره به ټول بهرني پوځیان له افغانستانه وځي او دا خبره دکابل اداري لپاره د سیاسي انتحار حیثیت لري نو هغوی کوښښ کوي چې په هره ممکنه وسیله وي د

تړون د ناکامولو لپاره هلې ځلې وکړي تر څو د بهرنیو ځواکونو په پاتې کیدو سره د هغوی د بقاء شیبې څه نورې هم اوږدې شي.

همداراز د دوحې په تړون کې دکابل اداره د امریکایانو لخوا نسیا منسیا له پامه غورځول شوې، هغوی کوښښ کوي دا تړون ناکام او په راتلونکي کې بل تړون او یا هم د دې تړون په بیا ارزونه کې په یوه ډول نه یوه ډول ځان مطرح کړي.

❊ ❊ ❊

## د دوحې تړون په تنفيذ کې د جانبينو ګټې

موسی فرهاد- ليکوال او څېړونکی

الحمدلله حمداً کثيراً طيباً مُّبارکاً فِيهِ، کَمَا يُحِبُّ رَبُّنا أن يُحمَدَ وَيَنبغِي لَهْ... أمابعد.

**فأعوذ بالله من الشيطن الرجيم. بسم الله الرحمن الرحيم «وَإِذَا قِيلَ لَهُمْ لَا تُفْسِدُوا فِي الْأَرْضِ قَالُوا إِنَّمَا نَحْنُ مُصْلِحُونَ» صدق الله العظيم.**

السلام عليکم ورحمة الله وبرکاته!

ډېرو درنو او قدرمنو حاضرينو! مشرانو، همځولو اوکشرانو!

موږ او تاسو نن ورځ دلته د يوې تاريخي شيبې د تجليل او يادښت لپاره را غونډ شوي يو، که څه هم د موقع تقاضا خو دا ده چې دلته بايد د فاتح او مغلوب لوري ترمنځ تفکيک وکړل شي، مګر تر دې قضاوت فی الحال موږ تيرېږو، او دا پريکړه ځمکنيو واقعيتونو او راتلونکي تاريخ ته پرېږدو، دا ځکه چې بشري فطرت دا دی چې شکست خورده هم ډېر وختونه د بريا دعوا لري.

انګريزي استعمار پخپل زعم دا نه تعبيروي چې د افغانانو د توري په وړاندې يې شکست خوړلی، او د امپراتورۍ زوال يې له همدې تورزنو جهادي غرونو او درو نه پيل شوی، بلکې وايي چې پخپله خوښه يې د ډيورنډ لاين او بيا د هندوستان د ويشلو د يو توافق په پايله کې له دې سيمې پښې سپکې کړې.

روسان هم وانمود کوي چې دوی د جنیوا د تعاهد په آساس له افغانستانه وتلي.

عیناً همدا خبره ښایي نن سبا هم زمزمه شي، چې ګویا راغلي فقط د همدومره مودې او همدومره اهدافو ترلاسه کولو لپاره وو. وبس.

مګر زمیني حقایق بیا بل څه وايي چې هر باشعوره وګړی یې ادراک کولای شي.

دلته زموږ هدف د هغو مفاداتو ذکرکول دي، چې د دوحې د تړون له لاسلیک وروسته، د هغه په تنفیذکې جانبینو ته رسیږي، خو د دې لپاره لومړی یوې ځغلنده کتنې ته اړتیا شته چې امریکا څنګه دلته راغله، څه یې غوښتل، څه یې وکړل، څه یې ترلاسه کړل، او څنګه بالآخره د دوحې تړون رامنځ ته شو.؟

د یولسم ستمبر پیښه په نیویارک کې رامنځ ته شوه، علل چې یې هرڅه او عامل چې یې هرڅوک وو؛ خو سزاء یې افغانستان، عراق بلکې ټولې اسلامي نړۍ ته ورکول شوه.

هغوی چې په لومړیوکې څنګه اټکل کړی وو؛ پایلې یې له هغه نه بلکل ۱۸۰ درجې برعکس او منفی راووتې. څومره مالي، ځاني او سیاسي زیان چې امریکا د افغانستان په جګړه کې لیدلی؛ ښایي د دوی د راتلونکو نسلونو لپاره یې د تاریخي شکستونو یوه نمونه جوړه شي.

سره له دې چې افغان ولس یې هم په اورکې د ژوندي سوځولو ترحده وځوراوه.

د امریکا او د دوی د لویدیځو ائتلافیانو له لاسه د نړۍ زیاتره بشریت ته، عموماً مسلمانانو ته، خصوصاً افغان بیچاره ولس ته دا نړۍ د اور په سره تبۍ بدله شوه، یویشتمه پیړۍ پر هغوی په داسي حال کې را دبره شوه، چې امریکا

فقط ایټم بم نه دی ورباندي کارولی، نور یې تر هغه را لاندي د مورپلار په نامه نیمه اټومي او فاسفورس بمونه، او نور هر ډول بیولوژیکي اوکیمیاوي وسلې ورباندي وکارولې.

د اوبو پرځای یې د انساني وینو ویالي وبهولي. سوکالۍ او آرامي یې تري ولوټله، د وطن پالني احساس لرونکي انسانان یې دګوانتنامو غوندي وحشي جزیروکې بندکړل، د آزادۍ ورکولو پرځای یې ځیني وګړي د زور، زر او ډالر په مټ وپېرل، تر ننه د غلامانو په څېرکار تري اخلي، او د خپلو خلکو پرضد یې جنګوي.

خلاصه دا چې د وخت استعمارګران هم ظلم کوي، وحشت کوي، یرغل کوي، د نورو خپلواکي له منځه وړي، عزت اوکرامت یې لوټي، بشري حقونه ترپښو لاندي کوي، مالي استثمارکوي، وژني او ربړوني کوي، خو له دې هرڅه سره سره، ځان عادل او منصف هم ګڼي..؟!

هوښیاران وایي، په ظالمانوکې ترټولو بدترین ظالم هغه انسان دی چې له ظلم کولو سره سره ځان بیا هم عادل، منصف او مظلوم ورته ښکاري.

لکه قرآن کریم چې یې ښه تصویر وړاندي کړی: « وَإِذَا قِيلَ لَهُمْ لَا تُفْسِدُوا فِي الْأَرْضِ قَالُوا إِنَّمَا نَحْنُ مُصْلِحُونَ. »–البقرة۱۱).

بهر حال د افغانستان هغه خونړۍ جګړه چې د ۲۰۰۱ کال په آخرکې د اشغال له امله رامنځ ته شوې وه؛ دا جګړه، یوې لسیزي ته په نژدي کیدو وه چې امریکایي کارپوهان له خپلي جنګي ستراتیژۍ څخه مایوسه شول، هڅې یې پیل کړي ترڅو د اسلامي امارت له لوري همیشه وړاندیز شوې فارمولې (مذاکراتو) ته مراجعه وکړي، او په دې توګه له ناګټونکي جنګ نه داسي ځان خلاص کړي چې ورسره یې نړیوال وجاهت هم یوه اندازه خوندي وي.

ظاهره خبره ده چې داسې یوکامیاب آپشن، دوی فقط د مذاکراتو پر میز موندلای شوای.

له همدې ځایه وه چې د یو نیم کال اوږدو، خوکامیابو خبرو اترو په پایله کې د امریکا او اسلامي امارت ترمنځ د دوحې تړون په نامه د اشغال د خاتمې توافقنامه لاسلیک شوه.

دا چې دا توافق د جانبینو مخصوصاً د امریکایي جانب لپاره څومره بدیهي ګټې لري؛ په دې کې خو هیڅ شک نشته او نه ورڅخه انکارکیدای شي چې د جنګ پرځای مسئله په خبرو حل کیږي. امریکایان او ائتلافیان یې بیرته خپلو وطنو ته ستنیږي، د مرګ له صحنې ځان باسي. هم خپل ژوند ژغوري او هم له هغه بشري جنایاتو لاس اخلي چې د بې ګناه افغان ولس په قتل عام سره یې دا شل کاله ترسره کول. دا راز له بې شمېره جنګي مصارفو او د وسایلو له بې خرته استهلاک څخه خپل هیوادونه ساتي.

دا خو یې هغه بدیهي ګټې دي چې انکار ورڅخه ناممکن دی، مګر هغه عمده او ستري ګټې چې امریکایانو د نظامي تیري په اراده، د یرغل په ابتدا او بیا د اشغال په دوام کې غوښتل ترلاسه کړي؛ طبعي ده چې هغه به له لاسه ورکوي، اما یو ښه بدیل یې موندلای شي خو فقط د دوحې تړون د تنفیذ له لارې، نه د جګړې او اشغال د دوام له طریقه.

امریکا چې په پېښو سترګو پر افغانستان بریدکاوه، هیڅ ډول سازش او نرمي یې نه منله، ښکاره خبره ده چې د دوی ستراتیژیک استعماري اهداف ډېر اوچت ول، د ترلاسه کولو لپاره یې حالات هم مساعد ورته بریښیدل، ځکه چې د برید لپاره یوه پلمه په لاس ورغلې وه، که څه هم کمزوري بهانه وه، او د طالبانو حکومت ډېرکمځواکه ورته ښکاریده، لهذا د افغانسان په اشغال کې هغوی تقریباً نیمه آسیا مستعمره کولای شوای. د نیمې آسیا ولکه

کول؛ ظاهره خبره ده چې د امریکا د واک غځوني او زبرځواکۍ لپاره ستره لاسته ور وړنه وه.

خو له عواقبو یې ناسنجیده وو، د امریکایي کارپوهانو له اوسني ندامت نه څرګندیږي چې که دوی دا جګړه د نیمې لسیزې لپاره هم متصوره کړې وای؛ ممکن هیڅ برید یې نه وای کړی، خو اوس دوی دوې لسیزې په جګړه کې داسې ښکیل پاتې شول چې هیڅ تصور یې نه کاوه.

مالي او ځاني تلفات یې دومره ګڼ دي چې د دوی خپلې ادارې یې په اړه داسې وايي:

د امریکا د ټیکس یا ګمرکي محصولاتو د ادارې د یو راپور له مخې: هغه امریکا چې یو وخت یې په پرلپسې توګه په هره یوه ثانیه کې ۷۵۲ ډالره ګټل، ولې اوس یې د ګټې پرځای، زیان ته مخه کړې، د جګړې له کبله د هرې ثانیې په تیریدو سره ۲۳۱ ډالره مالي زیان ورته رسیږي.

څکه چې د جنګ د هرې ورځې پوځي مصارف له ۲۵ نه تر ۲۸ میلیونه ډالرو پورې رسیږي. چې په دوه لسیزو کې دومره لوی مصارف خورا ملاماتوونکي ثابتیدای شي.

د الجزیرې د ۲۰۱۶م کال د یو راپور په آساس په یوه نیمه لسیزه کې د امریکایي یرغل له لاسه په افغانستان عراق او نورو سیمو کې ٦۰۰ شپږسوه زره پوځي او ملکي وګړي تلف شوي، تر۷ میلیونه زیات وګړي مهاجرت او بې کورۍ ته اړ شوي. او په همدې موده کې امریکا ته تر ۱۳$ ټریلیونه ډالرو مالي زیان رسیدلی دی.

نو دې ټولو تخمیني او سرسري احصائیو ته په کتو، سړی دې نتیجې ته رسیدلای شي چې امریکایي واکمنو ډېره ناسنجیده پریکړه کړې وه چې پر اسلامي نړۍ خصوصاً پر افغانستان یې یوه ناروا جګړه پیل کړې. داسې یو بې

هدفه او ناکامه جګړه چې اوس دوی خپله په دې باور دي چې هیڅکله به یې ډګټلو خوب رښتیا نشي. پرته له دې چې ورځ تر بلې یې زیاته مرګ ژوبله وزغمي، ملا ماتوونکی مالي زیان یې وګالي او بالاخره نړیوال غرور او حیثیت یې له خاورو سره خاوري شي.

لکه څنګه چې مو یادونه وکړه چې اوس امریکایي واکمن پخپله هم پرخپله پریکړه ندامت ښیي، د بیلګې په توګه به یې یوه وړه نمونه درته ذکر کړم:

د ۲۰۱۷م کال د مئ په میاشت کې د امریکا دکانګرس دوو غړو، (ولټربی جونز او جون ګرام اینډي)، دکانګریس د ودانۍ پر مخامخ د تصویرونو یو اوږد لیست را ځوړندکړ په دې لیست کې د ٥٦٨ وژل شویو سمندري پوځیانو عسکونه وو، دا تقریباً ټول د یوې سیمي یعنې یوې ولسوالۍ خلک وو، د کومې ولسوالۍ چې دکانګرس دغه غړی ولټرجونز هم اوسیدونکی دی. او دا پوځیان ټول د افغانستان او عراق په جګړه کې وژل شوي وو.

دکانګرس دغه غړي چې آرتوډوکس عیسایي دی؛ له خپلو نورو شریکانو سره په ګډه خبري غونډه راوغوښتله او خلکو ته یې وویل، زه تر هرڅه وړاندې له الله څخه غواړم چې ما وبخښي، وای ما ډېره ستره غلطي وکړه چې بوش ته مې پرافغانستان او عراق د جګړې په حق کې رایه ورکړه.

دوی وویل، موږ به نور دکانګرس له لارې داسې قانوني هڅې پیل کړو چې نور د امریکایی ولس د مالیې پیسې په افغانستان کې پر پوځي عملیاتو او انسان وژنې ونه لګېږي.

ولټر جونز په ژړا د هغه ۵۶۸ وژل شویو عسکرو لیست ته وکتل، ویې ویل دا ټول زما د سیمې زما د ولسوالۍ وژل شوي ځوانان دي. موږ ډېره ستره تیروتنه وکړه چې خپل ځوانان مو مرګ ته ولیږل.

دکانګرس د غړو دا خبري او دا واقعه موږ د يوې بيلګې په توګه ياده کړه چې په امريکا کې هم اوس بيخي لوی اکثريت پر خپلو استعماري جګړو پښيمانه ښکاري او ځان تاواني ګڼي.

کله چې دوی خپله اعتراف کوي چې دې يرغلونو، نه يوازي دا چې د دوی هغه ستراتيژيک اهداف يې ورته ونشوای ګټلای، بلکي برعکس تر اټکل پورته اخلاقي، مالي، ځاني، او د حيثيت زيان يې ورته واړاوه او دوام يې نور هم نقصانات ورته زياتولای شي؛ نو طبعي ده چې بديله لاره يې همدا تړون او تفاهم دی چې دوی له ناکامې جګړې خلاصولی شي.

دا چې د دې تړون له طريقه به د دوی لويه بديله لاسته راوړنه څه وي؛ په لاندي ډول يې ذکرکولای شو:

امريکا او ورسره د ناټو موجوده ائتلاف په حيث د يو زبرځواک د تاريخ په اوږدوکې د دې ليوالتيا لرله چې په جنوبي او منځنۍ آسيا کې داسي ريښې ولري چې د خپلو بالقوه يا بالفعله حريفانو په سترګوکې تيره اغزی ثابت شي او يا لږ تر لږه د خپلو حريفانو د پراختيا غوښتني په مخکې دفاعي خط ولري. خو دا کار هيڅکله ورته ممکن نه شو، فقط يوځل چې د شوروي يرغل په وړاندي د مجاهدينو په مالي، تسليحاتي او اخلاقي ننګه کې لويديځوالو ته دا زمينه مساعده شوه، خو هغه هم نيمګړې.

ځکه چې د هغه وخت له جهادي مقاومت سره د امريکا او غرب دوستانه هم پر دوه مخي بنا وه، تر بريا وروسته يې نه يوازي د مجاهدينو سره ديپلوماتيک روابط ونه ساتل، بلکي د تخريب او فاصلو پيدا کولو اوکمزوري کولو لاره يې ونيوه.

له همدې ځايه وه چې بيا هم د امريکا او لويديځ هغه آساسي ارمان پوره نشو، او په دې سيمه کې يې له هر ډول مؤثر شتون څخه ځان بي برخي باله.

تر دې چې د ناین الیون یا یولسم سپتمبر د واقعې په پلمه یې پر افغانستان د عملي هجوم پریکړه وکړه، عملاً یې دې کار ته را ودانګل، چې پس له دوو لسیزو هغه هم ناکام بریښي.

اوس که دوی بیرته د مخکنیو تیري کوونکو په څیر او د خپلو تیرو اشتباهاتو په تکرار سره عقب نشیني کوي؛ ممکن ترپخوا زیات د خپلو ارمانونو په ترلاسه کولوکې پاتي راشي.

خوکه چیری د دوحې د شوي تاریخي تړون په پوره تنفیذ سره د یو دیپلوماتیک سیال او بشري دعویدار په توګه چلن وکړي، ښایي چې دا کار یي د هغه ارمان په ترلاسه کولوکې اغیزمن ثابت شي چې دوی یې په دې سیمه کې خصوصاً په افغاني جغرافیه کې په لټه کې ول، البته په دومره واضح توپیر چې په خوا به یې په استعمارګرانه، دوه مخي استخباراتي او غیر دیپلوماتیک شکل ترلاسه کول غوښتل؛ او همیشه به له ناکامۍ سره مخ ول، خو اوس به یې د دې برعکس د یو دیپلوماتیک سیال په توګه دومره اغیزمن شتون وي چې هیڅکله به دا جغرافیه نه د دوی دګټو خلاف کاریږي او نه به دوی ته د پخوا په شان د دې زمینه سازه وي چې نور ورڅخه خطر محسوس کړي.

او دا واقعیت دی ځکه چې اسلامي امارت پر همداسې یو ریښتیني سیاست باور لري او په همدې کې د خپل هیواد، خپل ولس او خپل راتلونکي بقاویني.

زه فکرکوم دا هغه ستره لاسته راوړنه ده چې هم د افغانستان پخیر ده او هم د امریکا او د امریکا د لویدیځو انډیوالانو په ګټه ده.

ومن الله التوفیق

❊ ❊ ❊

# دهم حوت یا روز غلبه سنگر حق بر باطل

مولوی سید مطیع الله خلوتی
نویسنده و محلل امور سیاسی کشور

بسم الله الرحمن الرحیم

الحمد لله الذي صدقنا وعده، ونصر عبده، وأعز جنده، وهزم الاحزاب وحده والصلاة السلام على من لا نبي بعده

اما بعد:

واقعا دهم ماه حوت سال ۱۳۹۸ هجری شمسی که مصادف است با ۲۹ فروری سال ۲۰۲۰ میلادی و با پنجم ماه رجب المرجب سال ۱۴۴۱ هق مطابقت دارد سرنویشت ملتی را رقم زد که کاملا ۱۹ سال در مقابل اشغالگران امریکایی و۴۸ کشور متجاوز ناتو مردانه وار رزمیدند درحالیکه این ملت قهرمان را هیچ کشوری جز الله متعال یار ومددگاری نبود.

این ملت قهرمان چنگیز شکن و انگلیس شکن بودند وافتخار روس شکن را نیز داشتند اما حالا افتخار بزرگ وحیرت انگیز دیگر نیز نصیب این ملت مجاهد پرورگردیدکه چنین افتخارات عظیمی نصیب هیچ ملتی نگردیده است وآن شکستن سپر پاور دنیا (امریکا وناتو) با دستان مبارک مجاهدین سربکف امارت اسلامی میباشد.

این اوصاف قهرمانی، درحق این ملت مبالغه نیست، بلکه حقیقت است وقهرمانی این ملت در ادوار مختلف تاریخ نیز ثبت گردیده است

درکتاب معجم البلدان از شریک بن عبدالله رحمه الله که یک تابعی مشهور میباشد، نقل شده است (**أنه قال خراسان كنانة الله إذا غضب على قوم رماهم بهم**) میگوید که خراسان جعبه یا تیرکش الله متعال است هرگاه بر قومی خشم ورزد آنان را با این تیر می زند.

تاریخ نشان داده است که فرعون های زمان، همچو چنگیز ها، انگلیس ها وقشوخ به اصطلاح شکست ناپذیر شوروی سابق واکنون قوای مدرن جهانی یعنی اتحادیه اورپا در رأس آن امریکای مغرور با نوبه خود بالای این کشور فقیر اما غیور وبا ایمان, با زور وزر یورش آوردند اما دراین خاک نه تنها استقبال نشدند بلکه با خشم این ملت قهرمان روبرو شدند ودرس های عبرت ناک و تاریخی برای شان دادند.

تاریخ کشورما شاهد است که اشغالگران نه تنها در این میهن آرامش نداشتند، بلکه این میهن گورستان آنان گردیده است و زوال هرمتجاوز از این کشور آغاز یافته است بدین جهت افغانستان که درکتب قدیم، خراسان گفته شده، گفته این تابعی بزرگ نیزکاملا بجا واقعیت دارد.

ملت غیور افغانستان دراین اشغال جاری با آزمون های نهایت دشوار روبرو بودند آزمونی که امریکایی های متکبر با ۴۸ کشور تا به دندان مسلح اروپایی, که از حمایت دیگرکشورهای دور ونزدیک منطقه نیز برخوردار بودند, بالای این کشور فقیر ونظام حاکم امارت اسلامی یورش آوردند و سلاح ها وتکنالوژی های پیشرفته شان را بالای این ملت مظلوم تجربه کردند حتی بزرگترین بم دنیا یعنی مادر بم ها را بر این خاک پرتاب کردند, زندان های جهنمی ساختند، مظالم ووحشت های گوناگونی را انجام دادند واز همه تأسف آور وبدبختانه تر اینکه, شماری از افغان های وطن فروش وخائن نیز با آنان همکاری کردند, مجاهدین امارت اسلامی وملت مظلوم افغانستان جز

الله متعال فریاد رسی نداشتند, جهانیان صدای آنان را نمی شنیدند, حق سخن نداشتند, جای پناه ونجات نداشتند, درهرکشور صدای شان خاموش ساخته میشود ودر هرکشور جز زندان سخت توقعی نداشتند, به جهانیان زمزمه میگردیدکه طالبان قابل تعامل نیستند, جزکشتن وزندان دیگر راه بروی شان باز نیست, حتی کشورهای اسلامی کاملا از ایمان شان و ماضی پر افتخار غافل شده بودند, احساس مسئولیت در قبال این ملت مظلوم به باد رفته بود, این ملت کاملا از جهان وعالم اسلام مایوس شده بودند اما واما این ملت غیور وقهرمان کشور واقتدا به اسلاف ونیاکان شان, با عزم متین وصدق یقین شان, به هیچ نوع فشار دشمن تسلیم نشدند، و ۱۹ سال مسلسل درمقابل اشغالگران خارجی ونوکران خاین داخلی چنان فداکاری از خود نشان دادند وچنان رزمیدند وجنگیدندکه جهان ودشمن به هویت شان اعتراف کردند.

همه به یاد دارندکه امریکایی ها درسالیان اول اشغال شان, هرگز آماده نبودند با امارت اسلامی مذاکره نمایند وهمواره شعار میدادندکه طالبان زنده یا مرده بکار هستند تا آنان را محاکمه نمایند وبه جهانیان میگفتندکه طالبان قابل تعامل نیستند باید به زندان ها کشانده شوند ویا کشته شوند اما با نصرت ویاری الله متعال مجاهدین امارت اسلامی توانیستند یکبار دیگر خود را به جهانیان ثابت سازند وجنگ های شدید وعبرتناکی را علیه اشغالگران انجام دادند وبه آنان خسارات هنگفت مالی وجانی وارد نمودند وامریکایی ها جز عقب نشینی از افغانستان ویا کنار آمدن با امارت اسلامی دیگر راهی نداشتند وامریکایی ها مجبور شدند با مجاهدین امارت اسلامی عوض جنگ, راه دیالوگ ومذاکره را به پیش گیرندکه لله الحمد نماینده گان امارت اسلامی دراین روز مبارک وتاریخی یعنی دهم ماه حوت بعد از یکنیم سال مذاکرات طولانی و پیچیده موفق شدند تا امریکایی ها را به پایان اشغال وادار ومتعهد سازند و کشور عزیز ما را در ظرف ۱۴ ماه ترک نمایند ونظام خالص اسلامی

بار دیگر دراین کشور عرض اندام نماید واین ملت قهرمان دراین روز میمون, افتخار و پیروزی بزرگی را رسما نصیب گردید واین روز غلبه سنگر حق بر باطل شمرده میشود.

درپایان پیامم به این ملت قهرمان وسلحشور اینست که با یکصدا همه در کنار مجاهدین امارت اسلامی قرار بیگرند وبقیه اهداف بزرگ این ملت را یک یک بدست بیاورند, هنوز فتح نهایی نیست درحقیقت دشوارترین خط دشمن یعنی کمربند اول دشمن شکسته وبرای فتح بقیه کمربند های دشمن تلاش های خسته ناپذیری را با سوق واداره خاص ادامه دهند, تقوا واطاعت بیشتری پیشه گیرند تا به آرزوی نهایی خود که اقامه نظام خالص اسلامی درسراسرکشور است برسیم. وما ذلک علی الله بعزیز

❊ ❊ ❊

## د دوحې تړون او کابل اداره!

م، عتيق الله عزيزي- ليکوال او د سياسي چارو شنونکی

هر چاته لکه لمر روښانه ده، بلکې دوست او دښمن وربانـدې ګواه او شاهد دی چې نږدې دوه لسيزې وړاندې ړومبی امريکايانو او اشربانو يې د افغانستان پـه حـريم او حرمـت يرغـل راوړ، زرګونـه مجهـز پوځيـان يـې د افغانستان په پاکه خاوره ښکته کړل، يو رښتينی اسلامي نظام يې ړنګ کړ، وروسته بيا امريکا د المان په بون ښارکې د هغو يـو شـمير جهـاد فروشـو ډلـو ټپلو، له ترکيب څخه چـې دکمونيسـتي رژيـم لـه سقوط وروسـته يـې د افغـان مقدس جهاد پاک ارمانونه په اوبو لاهوکـړل، د شـر او فسـاد او خپـل منځـي جګړو په لمبو يې افغانسـتان لولپـه کـړ، د هغـوی د اسـتازو او هـم د غـرب پـه کلبونو او رسټورانټونوکې د را لويو شويو افغان نما څېرو په ګډون د افغانستان لپاره يو تالېختی رژيم رسم، جوړ او بيا يې په الوتکوکې کابل ته راووړ، څوک يې ارګ ته دننه کړل، څوک يـې وزيـران کـړل او چاتـه يـې ولايتونـه اونـورې مهمې دندې وسپارلې.

د افغانانو به کله هم هېر نشي چې د امريکايانو په حلقه بګـوش غلامـانو کې د جهاد او مجاهدينو يو شمېر داسې قائدين او رهبران هم شامل وو، چـې ځانونو ته په فقه، شريعت او حديثوکې له پوهاندۍ او پروفيسورۍ ښکته په بل څه نه قانع کېدل؛ خو چـې کلـه امريکايـانو ورتـه د ډالـرو بنډلونـه وشـړقول لـه هرډول هرکلي او فتواوو علاوه يې د امريکايـانو د بـي ۵۲ الوتکـو لـه ججـورو څخه پر افغان ولس د خروارونـو بمونـو پـه ناتـار سره يـواځې دا وويـل، چـې دابمونـه زيـات واړه اوکمکـي کمکـي دي، بايـد تـر دې درانـه او زيـات

ويجاړونکي وکارولی شي، تر څو د ده د ناترسه هوس له مخې، ډېر افغانان ووژل شي او ډېرې لمبې د افغانستان په ستمديده سينه کې بلې شي، د جهاد يو بل رهبر او پوهاند داسې هم و، چې کله د امريکا د هغه وخت ولسمشر جورج ډبليو بوش کابل ته په دوره راغلی و، ددې لپاره چې ځان ښه مخلص غلام ثابت کړي؛ په ارګ کې په خپله ماته اوګوډه انګريزي ژبه بوش ته وويل: ښاغليه!

ځان هسې مه ستومانه کوئ، خپل قيمتي عسکر او تکنالوژي بې ځايه مه استعمالوئ، ته ماته د سي آي اې خاص ټيم راوليږه، چې د امت په کچه هغه مجاهدين درته يو يو وښيم چې افغانستان ته آن د روسانو د يرغل پر مهال راغلي وو، د هغوئ ځالې، ادرسونه اوکوائف يوازې ما ته ښه معلوم دي.

وروڼو! چې د جهاد په نامه د ځينو رهبرانو دا حال وو، له پخوانيو کمونيستانو، ګلم جمانو، جباري مليشو، پاټکيانو او د غرب په فحاش خانوکې د ستر شوو، ديمکراتانو او جمهوريتپالو به کوم کرغېړن داستانونه وي چې ستاسي حضور ته يې کيږدو او څه ګيله به ورنه وکړو؟

خلاصه داده، چې دغسي لوېدلې او پلورل شوې څېرې امريکايانو خپلو ناوړه اهدافو ته د رسېدو لپاره پرافغان ولس حاکمانې او مسلطې کړلې، د تېرو دوو لسيزو په دوران کې دکرزي له دورو رانيولې بيا د ع او غ تر ادارو او د امرالله صالح او محب د شش و نيم او دولسنيمو بجو تر غوبل پورې ټولو ته که وکتل شي؛ هر يوه يو تر بل زيات کوښښ کړی تر څو خپلو بادارانو ته د غلامۍ د ښه اظهار او ثابتولو لپاره د افغان ولس په مرۍ پښه کيږدي، د ديني شعائرو توهين او سپکاوی وکړي، دژبې، سمت، نژاد او ډول ډول داخلې تراژيديو تخمونه وشيندي، د قومونو او مليتونو تر منځ د نفاق او تجزيې اوروته بل کړي، د فساد، ابتذال، فحاشۍ او بداخلاقۍ ريکاډ قائم کړي.

مونږ اوتاسي د تيرو دوه لسيزو په موده کې وليدل، که به د امريکا او ناټو قواوو هر څومره وحشت او بربريت ترسره کړ، مظلوم او بې وزله افغانان به يې په چاپو، بمباريو، ډرون بريدونو او نورو وحشتونوکې له تېغه تېرکړل، په ړومبي قدم کې به دکابل رژيم اجرتي اوکرايي قاتلانو دا هر څه په ځان منل چې دا کار دوی کړی، وروسته به چې پړه او مسؤليت امريکايانو ومانه دوئ به زيړې سترګي ونيولې، دغه راز ډير ځله به چې امريکايي عسکر ووژل شول، د هغوی د مرګ ژوبلې نسبت به يې هم ځانته کاوه چې په فلانۍ پېښه کې خارجي عسکر نه، بلکي د ملي اردو عسکر وژل شوي دا کارونه دوی د دې لپاره کول، چې د افغانستان له جګړې څخه د امريکايانو او غربيانو زړه تور نشي، روحيه يې ونه لويږي او و نه وايي چې نور دا جګړه دګټلو نه ده!!

په همدې خاطر له نورو هر ډول اسلام او افغان ضدګامونو سربېره دېته هم تيار شول چې د يوه امنيتي تړون په شکل کې د تل لپاره په رسمي ډول د افغانستان د خرڅلاو قباله امريکايانو ته وسپاري.

د نړۍ د دوهم مفکر (اشرف غني) هغه وضاحت او اعلان خو د هر افغان په ذهن کې انګازې کوي، چې خپل بادار ته د چاپلوسي په خاطر يې د اجيرې اردو منصبدارانو او جنرالانو ته وويل، چې تاسې د امريکا د نيويارک او واشنګټن د لاروکوڅو ساتونکي ياست او ستاسو له برکته ده چې د امريکا په ښارونو حملې نه دي شوې!!

شل کاله وړاندې د اسلامي امارت مؤسس مرحوم ملا محمد عمر مجاهد رحمه الله امريکايانو ته ويلي و، چې د افغانستان د اشغال او هضمولو تېروتنه مه کوئ، له افغان ولس او اسلامي امارت سره د زور او جبر پنجې نرمولو ته زړه ښه نه کړئ، دا سمه ده چې له ښارونو او دولتي ودانيو به مجاهدين څنډې ته کړئ، ولې له خپلي برحقي داعيې څخه به هغوی د مرګ تر وروستۍ سلګۍ پورې وروسته او بېرته نشي کړای.

نولس کاله وروسته د فقیر او ملنګ ملا محمدعمر مجاهد نورالله مرقده پیشګویي یوه یوه رښتیا شوه، د امریکا مغرور ماغزه سد او سر ته ورغلل که څه هم غلامانو، مفکرینو، وزیرانو، پارلماني چارواکو او اربکیانو یې په کوکو او بغارو امریکایانو ته وژړل چې! ګورئ ګورئ د سولې او خبرو لار و نه نیسئ، که تاسې دا کار وکړ د افغانستان د اشغال د خاتمې موافقه مو لاسلیک کړه مونږ به څه کوو؟ زمونږ سرنوشت به بیا څنګه وي؟

خو خبره له خبرې تېره وه، جنګي حربو او ستراتیژیو سر خوړلي وو، مجرب جنرالان شاګرځ شوي وو، ډالرو اغیز له لاسه ورکړی و، عسکر ټول په رواني رنځونو اخته شوي وو د سیاسي مکارو محلیلینو اټکلونه سرچپه شوي و او تبلیغاتي زهرجنو دستګاوو اوخیاطانو څخه لوری ورک وو، نو هماغه وو چې امریکا د خپل ځان د نجات او ابدي تباهي څخه د ژغورلو په موخه له اسلامي امارت سره د سولې، تفاهم او دیپلوماسي لار ونیوله، امارت د دیني او ملي ارزښتونو د دفاع په موخه ۱۸ میاشتې د مېز په سر له امریکایانو سره خبرې او مناقشې وکړې، چې د الله تعالی په خاص نصرت تېرکال دکب په لسمه نېټه د نړیوالو په حضور کې په یو لوی کنفرانس کې امریکا چمتو شوه، چې له اسلامي امارت سره د اشغال د خاتمې تړون لاسلیک او په افغانستان کې د امن ثبات او یوه اسلامي نظام د ټینګښت هوکړې ته غاړه کیږدي.

دکابل اداري چارواکو، چې د دې تاریخي تړون په لاسلیک سره خپله څیره په اوبوکې ولیده نو له هرې ممکنې لارې یې هڅه وکړه چې د تړون عملي کېدو مخه ونیسي.

په هره کچه یې هڅې پیل کړې ترڅو د افغانستان د اشغال دوام ته د افغانانو اړتیا وښیي، او د امریکا اوناټو د قواوو په پاتې کېدو سره خپل نامشروع واک ته بقاء ورکړي.

دکابل اداره د دې تړون د تطبیق څخه له دې امله ویره لري، چې واک، چور چپاول، د فساد او تورې مافیا راج یې له منځه ځي، ټول ترسره کړي جنایات یې سترګو ته دریږي، ویره لري که افغان ولس راسره حساب کتاب پیل کړ څه به کوو؟ خپله امریکا ورته تیاره نده چې پناه ورکړي، نو په خارجي میدان کې د امریکا نوي دولت، اروپایي ټولني او د ناټو سازمان ته یې په مسلسل ډول دا سلګۍ ووهلې، چې د دوحې په تړون دې له سره غور وشي، په داخل کې یې د علماوو، مذهبي او روحاني شخصیتونو، د پوهنتونونو د استادانو، ژورنالیستانو او لیکوالانو مرموزو وژنو او په مذهبي او علمي مرکزونو یې بریدونو ته لاس واچاوه ترڅو فضا نړۍ ته کړکېچنه، له تاوتریخوالي ډکه وښيي او هغوی ته دا پیغام ورکړي چې دوحې تړون ته اسلامي امارت اعتنا نه ده کړې دا دی وګورئ د جنګ شیوه یې بدله کړې، هره ورځ دومره خلک په مرموزو چاودنو او بریدونوکې دوی وژني، خو داسې بریښي چې د شړیدلې اداري ټولې منډې تړړې بې ځایه وې د امریکا نوي دولت هم کومه اعتنا ورته ونکړه، حتی د رژیم د مشر مسلسله هڅه داوه چې د امریکا نوي پاچا بائډن ته د تلیفون له لارې مبارکي ورکړي او ضمنا ورته زارۍ وکړي چې خپل پوځیان د یوکال لپاره نور هم په افغانستان کې وساتي، ځکه حالات ډیر خراب او تراب دي؛ ولې تراوسه د سپیني ماڼۍ تلفون د مفکر په وړاندې مصروف او په اصطلاح بیزي ده، د ناټو سازمان ته د رژیم ډیر امید وو چې که څه وکړي؛ د هغوئ د دفاع وزیرانو په وروستۍ غونډه کې هم چا د دې خبرې اطمنان او ډاډ ورنکړ چې د دوحي تړون په ځای به کوم بل تړون او هوکړې باندې غور کیږي، د ناټو سرمنشي د غونډې په پای کې وویل چې ټول به د رواني شوې سوله ییزې پروسې کامیابي ته کارکوي هغه پروسه چې د دوحې له تړون څخه سرچینه اخلي.

د پای کره او ثابته خبره دا ده چې د دوحې ترون په وړاندې که دکابل رژيم او نورې کړۍ هرڅومره حربې او توطيې په کار واچوي نتيجه او ثمره ځکه نلري چې د امريکا، سيمې، اسلامي امارت، افغانستان او حتی ټولې نړۍ ګټه، مصلحت او خير يوازې د دوحې د ترون په تطبيق او ماده په ماده عملي کولوکې دی، په څه ډول چې د ترون نيمايي مهمې برخې پلې او عملي شوي، دکابل اداره که په يوه سترګه ژاړي اوکه په بله خاندي پاتې حصې او بندونه به يې هم مني. (ان شاالله تعالی)

* * *

# ارمغان پیروزی

بقلم مولوی نعیم الحق حقانی

نویسنده و محقق مسائل سیاسی واجتماعی کشور

خداوندکریم و منان را بی‌نهایت سپاسگزاریم که امروز در روز بزرگ دهم حوت به ما توفیق حضور در این مجلس پرنور عنایت فرمود، این روز خجسته و تاریخی را در حالی گرامی می‌داریم که جان‌برکفان ما (مجاهدین غیور امارت اسلامی افغانستان) در سنگرها همچنان حضور گرم و پرشور داشته و همگام با بزرگان سیاسی خود همانندگذشتگان پرافتخار متعهد به تمام تعهدات خویش با جانب مقابل هستند و پایبندی به تعهد را یک اصل مهم در جریان مبارزات نظامی - سیاسی خویش دانسته و در اطاعت از فرامین رهبری در دنیا کم‌نظیر هستند.

می‌خواهم در این مختصر فرصت بگویم که مجاهدین غیور امارت اسلامی چگونه به اینجا رسید و از چه مراحل سخت و دشوار و پرفرازونشیب گذشتند، داشتن افتخار و رسیدن به چنین روزها در وهلهٔ نخست، فضل و احسان بیکران رب‌العالمین است که اگر نبود فضل و نصرت او ما هم اینجا نبودیم. بلی افتخار چنین ایام، حاصلِ سالیان جنگ و مبارزه بر ضد دشمنان آب‌وخاک ما بود، حاصلِ دعای مخلصین و قربانی‌های بی‌مثال ملت مبارز و فداکار ما بود، مجاهدین امارت اسلامی به دنیا نشان دادکه به مقدسات دین مبین اسلام تا کجا متعهد و پایبند بوده و به خاطر اسلام، قرآن، دین و سرزمین خود حاضر به چه فداکاری‌های بی‌مثال‌اند، فداکاری‌های که دوست و دشمن

بـدان معـترف بـوده و بـر غـيرت و مردانگـی، رزمنـدگی و صـلابت مـا انگشت‌به‌دهان مانده و شجاعت و حريت طلبی ما را فوق‌العاده می‌ستايند.

امـارت اسـلامی افغانسـتان صـاحبِ پاليسـی روشـن، ديپلماسـی قـوی، مبارزانِ مخلص، علمای دعوتگر، جوانـانِ رشـيد و فـداکار، ملتـی سلحشـور و بسی اهل‌دل را همـراه بـوده و بـا همـان «توکـل محـض» کـه رهبر عالی‌قـدر مرحوم اميرالمؤمنين «ملا محمد عمر مجاهد» رحمت‌الله عليه مبارزۀ خـويش را اعـلان فرمـوده در همـان مسير تـاکنون گـام برداشـته و بـه آرزوی نيـل بـه سعادت دنيا و آخرت تا قله‌های بلند پيروزی پيش رفته و همچنان با توکـل بـر ذات يگانـۀ حـق بـر اسـتيج بلنـد دنيـا ايسـتاده شـده و صـدای حق‌طلبانـه و آزادی‌خواهی خويش را به‌گوش جهان و جهانيان رسانيده و می‌رساند.

مجاهدين امارت اسلامی افغانستان بـه ملـت خـود، کشـورهای منطقـه و جهان نشان داده‌که آن‌ها صلح واقعی را برای مردم شريف وکشور عزيز خـود تعقيـب‌کـرده و می‌خواهنـد، آن‌هـا دراين‌بـاره بـا دنيـا سـخن‌گفتـه و خبرگـان سياسی دنيا را متقاعدکردندکه جهاد و مبارزه‌شان يـک حـق مسـلم و مشـروع يک ملت آزاده بوده و تا دستيابی بـه آرمـان آزادی و اسـتقلال واقعـی‌کشـور خـويش بـه چيـزی‌کمـتر از نظـام مقـدس اسـلامی قناعـت نکـرده و راضـی نمی‌شوند.

آری!

آرمان ما آرمان شهدای ماست، آرمانِ مـا آرمـان تـاريخ پرافتخـار ماسـت، آرمان ما آرمان قيام تاريخی ملت قهرمان‌کابـل در سـوم حـوت ۱۳۵۸ هجـری شمسـی و آرمـان شـهدای‌گلگـون‌کفن ۲۴ حـوت ۱۳۵۷ هجـری شمسـی ملـت شريف هرات است، آرمانِ ما آرمان رهبران عالی‌قدر و مجاهد صفت ما است که در راه آن آرمان مقدس‌کباب شدند!

بلی آرمان ما نظام مستقل اسلامی است آن‌چنان نظام اسلامی که تمام افغان‌ها در آن عزت، امنیت، رفاه، آرامش و خوشی را به‌طور واقعی احساس و لمس کنند و از مزایای عالی آن بهره‌مند شوند.

نظام اسلامی که پس از رسیدن به آزادی و استقلال واقعی، بازسازی اقتصاد و زیربناهای کشور، نجات از بحران‌ها و چالش‌های تفرقه‌افکنانه، ختم تعصبات قومی و نژادی و ایجاد وحدت و اتفاق به معنی واقعی کلمه در گوشه گوشهٔ افغانستان در اولویت آن نظام قرار دارند. آن نظام اسلامی که علمای کرام ما در آن احساس امنیت کرده، اقشار تحصیل‌کرده وکدرهای علمی ما صیانت شده، ملت مسلمان ما به سیمای اسلامی و مفاخر علمی و ملی خود بالیده و به ارزش‌های واقعی آراسته و مزین شوند.

آن نظام اسلامی که در آن خواهر و مادر ما به کرامت لازم رسیده و به اقشار ستمدیده ترحم شده، فقر از جامعه زدوده شده و ملت بی‌بضاعت ما از ظلم ظالمان و شر خائنان نجات پیدا کند.

نظام اسلامی که جوان مسلمان ما از داشتن محاسن خود شرم نخورده، مورد شماتت قرار نگرفته و خدای‌نخواسته بی‌عزت نشود، چنان نظامی که ترس و یاس بر ملت حاکم نبوده، شاهراه‌ها و ذخایر مادی و معنوی، علمی و هنری و سرمایه‌های عظیم کشور عزیز ما صیانت شود.

وقتی سخن از نظام اسلامی می‌آید تنها کسانی از آن احساس ترس و یاس می‌کنندکه دستشان در خون ملت رنگین، دستشان در خیانت و غصب اموال و اراضی ملت دخیل، تمامشان در فساد اداری و اخلاقی غرق و از نامِ اسلام و نظامِ اسلامی وحشت دارند؛ وگرنه آمدن نظام مستقل و مشروع اسلامی که ارزش‌های اسلامی در آن رعایت و صیانت شود، آرزوی فرد فرد ملت مسلمان ماست.

در نظام اسلامی اولین چیزکه حاکم می‌شود و ملت مسلمان ما به آن اشد ضرورت دارد امنیت واقعی و سرتاسری است، صیانت جان و مال است، ریشه‌کن شدن اختطاف‌ها، ترورهای کور، برچیده شدن بساط فساد، اختلاس و دزدی‌ها و غارت اموال مسلمانان است صیانت ازکیان مقدس اسلام است؛ آنچه امروز شب و روز از سوی ادارۀ کابل کوشش می‌شود این است که در چشم مردم خاک پاشیده و مجاهدین امارت اسلامی را در چشم وگوش مردم بد جلوه دهند.

**اما، اما ملت عزیز ما بشنوند و بدانندکه:**

فرزندان غیور آن‌ها (مجاهدآنجان‌برکف امارت اسلامی) حماسه‌سازان تاریخ پرافتخار دهم حوت و جانبازان و سربازان فداکار اسلام برای ملت خود پیغام امن و صلح را با خود داشته و برای همه پیام عفو و محبت را به همراه دارند، آنانی که هم‌اینک در ساحات تحت تصرف مجاهدین امارت اسلامی زندگی می‌کنند بهتر معنی این جملات و عبارات را درک کرده و می‌دانندکه ما چه می‌گوییم، چه می‌خواهیم، چه می‌کنیم؛ متأسفانه مشکل اساسی که دشمنان همواره ایجادکرده است این بوده که ما را در رسانه‌های زرخرید خود بد تبلیغ کرده و می‌کنند ما به ملت خویش اطمینان می‌دهیم که بیایند ما را از زبان خود ما بشناسند، ما را از زبان ما قضاوت کنند، ما را در کردار و گفتار ما پیدا کنندکه چه‌بسا در آن‌ها بسی تحول پیدا خواهد شد؛ وقتی ملت ما آگاه شوندکه توصیه رهبری عزیز ما در مورد ملت شریف چه اندازه دلسوزانه و خیرخواهانه است، در مورد علمای کرام، در مورد حقوق اقلیت‌ها و در تمام مسائل چگونه نظر و پالیسی داریم حتماً ملت ما بر حقانیت گفتار و پندار ما بهتر آشنا شده و خوب‌تر فیصله خواهندکرد؛ پس لطفاً... لطفاً ما را از زبان و چشم رسانه‌های ضد ما قضاوت نکنند بلکه

بشنوند صدای ما را از مطبوعات خود ما، از رسانه‌های خود ما، از رسانه‌های آزاد و مستقل و تمام ژورنالیست‌های بیدار ضمیر...

ملت ما، ما را از سایت‌های ما تعقیب کنند اگر می‌خواهند در مورد ما بخوانند و بیشتر مطالعه کنند به کتاب‌ها و مجله‌های رسمی ما مراجعه کنند ما را از شخصیت‌های ارزشمند ما قضاوت کرده و به مطالعه بگیرند، ما از این تریبون و هر تریبون دگرکه صدای آزادیخواهی ما را به ملت شریف ما انعکاس دهد می‌گوییم:

**ای ملت بزرگوار افغانستان!**

بدانید و خوب مطمئن باشیدکه مجاهدین فرزندان شما و از خود شماست، مجاهدین در حدود نزدیک به بیست سال کامل مبارزه را در همکاری شما ملت غیور دانسته و به آحاد ملت شریف خود ارج گذاشته و احترام دارد، مجاهدین در همه حال و در همه‌جا در فکر رفاه، آزادی و آبادی سرزمین شما و ایجاد فضای آرامش واقعی برای شما ملت عزیز بوده و هست و این تمام قربانی‌های موجود به خاطر آمدن و بقاء و رشد ریشه‌های نظام اسلامی و اعادهٔ عزت و حیثیت واقعی ملت مسلمان ماست.

آنچه در سال پار در چنین روزی (دهم حوت سال ۱۳۹۸) به امضای مجاهدین امارت اسلامی افغانستان و ایالات‌متحدهٔ امریکا رسید آن روز درواقع روز ملت ما بود، آن پیمان به نفع هر دوکشور (افغانستان و امریکا) بود، آن گفتمان سیاسی یک‌راه سنجیده، دقیق و معقول بود، راه دیپلماسی و باور و پذیرفتن مشروعیت مبارزهٔ برحق ما، ما در طول دقیقاً یک سال به همه نشان دادیم که تا چه حد به این پیمان متعهد بوده و هستیم چون تأکید رهبری ما طبق ارشادات دین مبین اسلام به پایبندی و تعهد به اصول و معاهدات است، پس برای امریکا و ائتلاف ناتو نیز بهترین شرایط مهیا شده است که

مطابق پیمان دوحه کشور عزیز افغانستان را ترک گفته و بگذارند افغان‌ها باهم به صلح و امنیت واقعی دست پیداکرده و مشکلات و چالش‌های فراوان که به سبب دوام اشغال در این کشور ایجادگردیده حل و تمام گردد.

بگذارند ملت وکشور عزیز افغانستان اولاد فداکار خود را در افغانستان ببینند، بگذارند فرزندان رشید مکتب عمری و منصوری تحت هدایت شیخ صاحب و معاونین محترمشان حفظهم‌الله افغانستان عزیز را به‌جایی برسانندکه حق این وطن مظلوم است، بگذارند آزادیخواهان مجاهد، دردها را التیام بخشیده، اشک‌ها را پاک‌کرده، خوشی‌ها را پیوند زده و لبخند عزت و آزادی را بر لبان داغ بستهٔ ملت شریف خویش به ارمغان آورند.

پیمان دوحه، مجاهدین و مبارزهٔ برحق آن‌ها را مشروعیت معنوی و سیاسی بخشید و این درواقع بخشی از نتایج سال‌ها مبارزه بود که محقق گردید، ملت مسلمان ما که بیشترین دردها و رنج‌ها را بالخصوص در دو دههٔ اخیر متحمل شد در آن روز تاریخی به معنی واقعی کلمه به زندگی، امید، خوشبختی، آزادی و استقلال لبخند زد.

و آنچه به ارمغان آمد، پیروزی ملت نام گرفت، توسط مجاهدی که از متن همان ملت سلحشور تفنگ بر شانه کشیده و قلم حقیقت را به دست گرفت.

بسیاری‌ها می‌پرسندکه در رسانه‌ها دائماً در مورد طالب و مجاهد بد گفته‌شده و اگر ما بخواهیم طالب و مجاهد را از زبان خودش بشنویم برای ما چگونه معنی می‌کنید برایشان ضمن احترام فراوان می‌گوییم:

### ای ملت شجاع و قهرمان افغانستان!

اگر بخواهیم طالب و مجاهد را خلاصه معنی کنیم: طالب یعنی مجاهد و مجاهد یعنی عزت، یعنی اقتدار، یعنی چکیدهٔ غیرت، یعنی آرمان پاک شهدا، یعنی دعای خیر پدر و مادر، خلاصهٔ حمیت و تعصب دینی، یعنی

ایثار، طالب یعنی فداکاری، یعنی مجاهده، طالب یعنی مجاهد استشهادی و سر بکف سنگر اسلام، طالب یعنی شاگرد مخلص و دعای قبول‌شدۀ علمای ربانی، طالب قوت قلب مسلمانان، طالب یعنی ایستادگی، طالب یعنی قاطعیت و صلابت؛ طالب یعنی فرزند سلحشور هندوکش و پامیر، طالب یعنی تکرارکنندۀ تاریخ پرافتخار نیاکان غیور دیروز و خلاصه طالب یعنی باور، یعنی صداقت، طالب یعنی تعهد، یعنی آزادگی و آزادیخواهی، طالب یعنی مبارز خستگی‌ناپذیر، مجاهد دل‌پذیر و تسلیم‌ناپذیر، طالب یعنی بنده به‌حق، طالب یعنی دعای نیمه‌شب مادران و پدران افغان زمین، طالب یعنی چشم امید مسلمانان، طالب یعنی پیروزی و طالب یعنی افغانستان!

بعدازاین اگر بازهم کسانی طالب یا مجاهد را هنوز هم فکر می‌کنندکه می‌توانند از مرگ، زخم، زندان، هجرت و غیره بترسانند برایشان شعر یکی از شعرای معاصرکشور (محترم جمال آخوندزاده) را به زمزمه می‌گیریم که گویای حقیقت حال مجاهد است:

زخم یعنی زینت اندام ما
هرکجا ناله ست جوشد نام ما

ما تفنگ‌ها را به خون خو داده‌ایم
ما به آتش‌ها تکاپو داده‌ایم

خشم توفان‌ها زما آبستن است
قله‌های عشق ما را مدفن است

موج یعنی قوت بازوی ما
مرگ اگر مرد است آید سوی ما

ما از آن‌سوی شهامت آمدیم
ما به دیدار شهادت آمدیم

آمـــدیم از جنـــگ، امـــا خســـته نـــه
دســـت بشکســـته بـه گـــردن، بســـته نـــه

کولـــه بـــار مـــا همـــه ایثـــار عشـــق
مقصـــد مـــا دوســـتان دیـــدار عشـــق

مـــی‌رویم لبریـــز ازگـــرداب خـــون
مـــی‌رویم مســـتانه تـــا شـــط جنـــون

هم رکـاب سـجده تـا محـراب عشـق
خـالی از افسـانه گـرم خـواب عشـق

دســـت مـــا طغیـــانگر و بی‌حوصـــله
گام‌هـــا مـــان همچـــو بـــال چلچلـــه

مـی‌رویم آنجـا کـه نـامش آشناسـت
می‌رویم آنجا که سر از تـن جداسـت

مـی‌رویم افتـان و خیـزان مـوج مـوج
تـــا اقامتگـــاه یـــاران تـــا بـــه اوج

کـــوه یعنـــی گام‌هـــای ســـخت مـــا
آتش و خون است هـر جـا رخـت مـا

از بـــــرادر پـــــای او را دیـــــده‌ایم
از پـــدر دســـتش فقـــط بوســـیده‌ایم
ســینه مــادر بــه خنجــر چــاک شــد
چــادر خــونین خــواهر خــاک شــد

کودکــانیم و پــدر گــم کــرده‌ایم
عیــد، بــر عکســش تبسـم کـرده‌ایم

بوسه جز سیلی هجران نیست نیست
جز پدر درمان طفلان نیست نیست

مـا بـه شـب مهتـاب برپـا مـی‌کنیم
انقـــلاب نـــاب برپـــا مـــی‌کنیم

بـــاز می‌ســـازیم مـــا سرچشـــمه را
برج‌هــــای خســــتهٔ اندیشــــه را

تـــا تولـــد بـــاز می‌تـــازیم مـــا
بـــازهم محـــراب می‌ســـازیم مـــا

دهم حوت ۱۳۹۹ سیمنار علمی به مناسبت گرامیداشت فرخنده

روز امضای پیمان پایان اشغال

## د دوحې تړون لومړۍ کليزه، هيلې او انديښنې!!

فاتح افغان- ليکوال او شنونکی

پوره يوکال وړاندې د حوت په ۱۰ مه نېټه د قطر په پلازمېنه دوحه کې د افغانستان اسلامي امارت او د امريکا د متحده ايالاتو تر منځ له افغانستان څخه د يرغلګرو قواوو د وتلو تړون لاسليک شو.

د دوحې د تړون له لاسليک سره سولې ته د افغانانو مړاوې هيلې راوټوکيدلې، دوی هيله لرله چې نور به د اشغال خپسکه له افغانستان څخه پورته او غلامان به يې دکفارو له ملګرتيا څخه توبه وباسي او افغانان به سره غاړه غړۍ شي، افغانان خوښ وو چې نور به له چاپو او بمبارونو خلاص شي، نور به دګران هيواد په فضاء کې بنګنې او بي ۵۲ الوتکې پروازونه نکوي، دوی تمه لرله چې ټول بنديان به راخلاص او د اسلامي حکومت او سولې په راتګ سره به د جهاد اهــداف متحــقق او د شهيدانو ارمانونه به پوره شي.

د دوحې تړون د سولې لپاره ښه زمينه مساعده کړه او په دې کې شک نشته که د توافقنامې سره سم عمل شوی وای اوس به په هيوادکې له يوې پايدارې سولې څخه برخمن وای، خو متاسفانه په دې برخه کې په قصدي ډول له ټيل ماټيل څخه کار واخيستل شو چې ورسره د سولې پروسه هم ټکنۍ او د توافق شوي خط سير سره سمه په مخ نه ولاړه.

لاندې لیکنه کې د تړون تیر یوکال ته ځغلنده کتنه کوو ترڅو جوته شي څوک تر څومره اندازې پر او چا ترڅومره بریده په خپلوکړیو ژمنو باندې وفا کړې؟

تړون له څلورو برخو جوړ او پکې هر لوري یو لړ ژمنې کړې وې چې په عملي کولو یې مکلف وو، چې اسلامي امارت د لاندینیو ژمنو د عملي کولو مسوولیت درلود.

له افغانستان څخه امریکا او متحدانو ته یې ګواښ نه پیښول.

بین الافغاني مذاکرات پیلول.

اوربند د بین الافغاني مذاکراتو د اجنډا د یوې برخې په توګه منل.

**له افغانستان څخه ګواښ:**

اسلامي امارت په تړون کې ژمنه کړې وه چې افغانستان کې به داسې ډلو یا کسانو ته ځای نه ورکوي چې امریکا او د هغوی متحدینو ته ګواښ پیښوي، اسلامي امارت پر خپله دغه ژمنه مکمل وفاء وکړه هاغه دی د تړون یوکال په پوره کیدو دی، خو د افغانستان له خاورې څخه امریکا او متحدانو ته یې هیڅ ګواښ نه دی پیښ شوی، اسلامي امارت لکه څرنګه چې په تړون کې ژمنه کړې ده، نه یې پخوا چاته اجازه ورکړې چې د افغانستان خاوره د چا په ضرر وکاروي او نه به یې په راتلونکې کې ورکړي.

**اورکم او د عملیاتوکچه ټیټه ساتل:**

سره له دې چې اسلامي امارت د دوحې د تړون له مخې د عملیاتو د کچې په ټیټ ساتلو باندې مکلف نه و، خو د حسن نیت په خاطر یې د دوحې له تړون وروسته له خپل لوري د عملیاتوکچه ډېره راټیټه کړه، پسرلني عملیات یې اعلان او پیل نه کړل، دفاعي حالت یې غوره او د ولایاتو او

ولسوالیو په مراکزو یې بریدونه ونکړل، خپل مجاهدین یې کنترول او له سترو حملو څخه یې راوګرځول.

موږ شاهدان یو د ټول کال په جریان کې په کابل او نورو سترو ښارونوکې ستر برید نه دی شوی، همدغه راز له یاد تړون څخه تر دې دمه پر امریکایي عسکروکوم برید نه دی شوی.

خو له بده مرغه مقابل لوری په دې موردکې هم خپلو تعهداتو ته ژمن پاتې نه شو، یوازې د امریکا له لوري د تیرکال په جریان کې په سلګونو ځله له تړون څخه تخلف او سرغړونه شوې، دا یوازې د امریکایانو سرغړونې دي د کابل ادارې تخلفات له شمیره وتلي دي.

## اوربند د بین الافغاني مذاکراتو په اجنډاکې:

اسلامي امارت له خپلې ژمنې سره سم بین الافغاني مذاکرات پیل کړل او اوربند هم د بین الافغاني مذاکراتو د اجنډا د یوې برخې په توګه ومنل شو، خو دکابل ادارې پلاوی بې ځایه په لومړي سرکې په اوربند ټینګارکوي چې په لوی لاس د خبرو د زیانمنیدو سبب ګرځي.

## بین الافغاني مذاکرات او د بندیانو خلاصول ځنډول:

د اسلامي امارت اړوند هغه ۵۰۰۰ بندیان چې باید د تړون په لسمه ورځ راخلاص او متصل ورپسې بین الافغاني مذاکرات پیل شوي وای، د امریکایانو اوکابل ادارې له لوري یې قصدا خلاصول تر شپږ میاشتو وځنډول شول چې ورسره بین الافغاني مذاکرات هم وځنډیدل.

امریکایانو اوکابل ادارې له لومړي سره د سولې له پروسې سره دلچسپي نلرله او پکې د قدم اخیستلو لپاره زړه نازړه وو، دکابل ادارې د مرکچي پلاوي په جوړولوکې له بې ساري ځنډ څخه کار واخیست، له اوږده ځنډ وروسته یې داسې پلاوی تشکیل کړ چې د ټولو احزابو اوګوندونو نمایندګي

يې نشوه کولای او نه يې هم اختيارات او واکونه لرل، خو بيا هم اسلامي امارت له اغماض څخه کار واخيست او له همدغه پلاوي سره يې مذاکراتو ته زړه ښه کړ.

اسلامي امارت له خپل اړخ څخه د بين الافغاني مذاکراتو لپاره له ډير پخوا څخه آمادګي نيولې وه، قوي مذاکراتي ټيم – چې ګڼ شمير د رهبری شوری غړي پکې وو- يې اعلان کړ.

## تورلیست او د جایزې لیست ختمول:

همدغه راز د تړون له مخې امريکا مکلفه وه چې د ۲۰۲۰م کال د اګست مياشتې تر ۱۵ مې نيټې پورې هغه بنديزونه لرې کړي چې د دوی له لوري په ظالمانه ډول د اسلامي امارت په غړو باندې لګول شوي وو او په دې توګه بايد تور ليست او د جايزې ليست مکمل ختم شوی وای، خو ملل متحد او امريکا نه يوازې دا چې د دې بنديزونو په لرې کولوکې عملي ګام پورته نکړ، بلکې د بنديزونو د څار د کميټې مشري يې څه موده وړاندې هند ته وسپارل چې بې موجبه يې د طالبانو په اړه دښمنانه دريځ غوره کړی دی.

## د منفي تبلیغاتو څپه:

د متخاصمو جهتونو ترمنځ د تړون له لاسليک کيدو وروسته داسې ګامونه اخيستل پکار وي چې د باور فضاء رامنځته او زړه بداوی له منځه يوسي.

اسلامي امارت له خپله اړخه په دې برخه کې هم کامل انعطاف وښود او د امريکايي اشغالګرو او د کابل ادارې پر ضد يې په خپل مطبوعاتي اسلوب او لهجه کې نرمښت راووست.

خو متاسفانه چې مقابل جهت په دې برخه کې هيڅ انعطاف ونه ښود د تړون په جريان او وروسته د امريکايي جنرالانو او چارواکو له لوري په تنده لهجه افغانانو او اسلامي امارت ته د تهديدنو اوګواښونو لړۍ شدت وموند.

همدغه راز اشرف غني او مرستیالانو یې د اسلامي امارت پر ضد د ناوړه تبلیغاتوکمپاین تیزکړ، تبلیغاتي غونډې او جلسې یې پیل کړې، د اسلامي امارت د مشرانو تخریب او سپکاوی یې خپله دنده وګڼله.

په دغه تبلیغاتي کمپاین باندې یې په ملیونونو ډالر مصرف وکړ خو هیڅ پایله یې ورنکړه بلکې په افغان ولس کې دغه سوله ضد څیرې نورې هم منفورې وګرځیدلې.

## د تړون ارزونه:

د امریکا په انتخاباتوکې د بایډن له کامیابیدو وروسته امریکایي چارواکو دې خبرې ته زور ورکړی او دا ډنډوره یې پیل کړې چې اسلامي امارت تړون ته ژمن نه ده پاتې شوی او موږ غواړو چې تړون له سره وارزوو، خو په دې برخه کې دا باید جوته وي چې امریکایان حق نلري په تړون کې نوي شرطونه کیږدي، ځکه هغوی سلهاو ځله له تړون څخه سرغړونه کړې، یوازینی اړخ چې د نویو شرطونو وړاندې کولو حق ورسره دی د افغانستان اسلامي امارت دی، ځکه د دوحې په تړون کې کړیو ژمنو باندې یې وفاء کړې او د سرغړونه یې ورڅخه نه ده کړې.

## د خارجي ځواکونو مکمله انخلا:

د دوحې په تړون کې د ژمنې له مخې امریکا مکلفه ده چې د تړون له لاسلیکیدو وروسته تر څوارلسو میاشتو پورې خپل ټول پوځي ځواک له افغانستان څخه وباسي، تر یوه وخته پورې دا پروسه په ښه توګه روانه وه، خو اوس د امریکایي چارواکو او جنرالانو له لوري داسې اشارې ورکول کیږي چې ګواکې امریکا نه غواړي په خپله دغه ژمنه وفاء وکړي.

په افغانستان کې د اشغالګرو ځواکونو شتون د روانې جګړې ستر لامل دی او مکمل وتل یې د سولې پر پروسه ډیر مثبت اغیز پریباسلی شي، اما که

خدای ناخواسته امریکایې چارواکي بیا هم له سرتمګۍ څخه کار اخلي او د ځواکونو په ایستلوکې په خپله ژمنه وفاء نه کوي، دا به د جګړې په اور باندې د تیلو د پاشلو په مانا وي، چې له امله یې جګړه نور هم زور واخلي او ډېر خلک به پکې ووژل شي.

نو ښه دا ده چې امریکایان په خپله ژمنه ودریږي د ځواکونو په ایستلوکې عجله وکړي، ځکه دا د افغان او امریکایې دواړو ولسونو په ګټه ده.

متاسفانه د امریکا اوکابل اداري د ناغیړیو، له تړون څخه سرغړونو او تخلفاتو د سولې پروسه له خنډ او ځنډ سره مخ کړې، په دې موردکې د پېړې ګوته زیاته امریکا ته نیول کیږي چې په تړون کې کړیو خپلو تعهداتو باندې کلکه ونه دریده.

خو اوس هم اوبه له ورخه تیرې نه دي امریکا باید په خپلو ژمنوکلکه ودریږي، پاتې ټول مجاهد بندیان راخلاص، بندیزونه ختم او د منفي تبلیغاتو لړۍ بنده او په صادقانه توګه د سولې لپاره لاس په کار شي، اسلامي امارت سولې ته کاملا ژمن دی او هیڅکله په جګړې ټینګار نه لري.

❊ ❊ ❊

## د دوحې له تړون څخه مو څه تر لاسه کړل؟

م، رحمت الله نړیوال

لیکوال او څېړونکی

ځیني ملګري دا پوښتنه کوي چې د دوحې د تړون څخه نو طالبانو څه تر لاسه کړل؟ په داسي حال کې چې د امریکا نوی حکومت یې د ارزونې په نتیجه کې ممکن لغوه کړي!

د دوی په ځواب کې به ووایم چې داسي پوښتنې دوه ډوله کسان کوي، یوه هغه ډله ده چې د دوی د پوښتنې هدف ذهنونه مغشوشول دي، دا هغه خلک دي چې د تړون له عملي کېدو سوځي، اوس غواړي چې په یوه نه بله بهانه تړون تخریب کړي، دا خلک خو په ځواب نه ارزي او نه د دې ارزښتمن وخت په ضایع کېدو ارزي.

پاته شول هغه ملګري چې د دې تبلیغاتو تر اغیزې لاندي راتلو له امله او یا د نه خبرتیا له امله دا پوښتنه کوي، د هغوی لپاره مې یو څه معلومات را غونډکړي، چې د دوی د تسلۍ تر څنګ به د سولې تخریبوونکو تبلیغاتو مخه هم په ډب شي.

تاسو ته معلومه ده چې د دوحې د تړون هدف زموږ څخه د اخیستل شوې خپلواکۍ بیرته راګرځول، اشغال ختمول، اسلامي نظام قائمول او له هیواد څخه د فساد او نا امنۍ ټغر ټولول دي، د تړون په بشپړ عملي کېدلو سره به طالبان ډېر دغو اهدافو ته ورسیږي او دوه میاشتې وروسته به د ټولو اشغالګرو ځواکونو په وتلو سره افغانستان یو خپلواک هیواد وي او د ټولو

افغانانو په خوښه به د یوه بشپړ اسلامي نظام د جوړښت او نفاذ لپاره ګړندۍ هڅې پیل کړي. ان شاء الله!

خوکه بالفرض د امریکا نوی حکومت همدا تړون مات کړي نو امریکا به خپل حیثیت ته تاوان واړوي او نړیوالو ته به پر ثابت شي چې دوی پر خپل شوي تړون ونه دریدل، بر عکس طالبان چې د خپلو اسلامي اصولو سره سم تړون ته ژمن پاته شول؛ نړۍ ته به متعهد، بامسئولیته او سوله غوښتونکي ور وپیژندل شي.

ددې تر څنګ طالبانو د دوحې تړون په ترسره کولو سره یو شمېر داسي اهداف تر لاسه کړل چي له تړون مخکي یې تر لاسه کول ناشوني برېښېدل، په لاندي ډول د دوحې تړون د لاسته راوړنو څو بېلګې وړاندي کوو:

۱ـ د دوحې د تړون له مخې ۵ زره اسیر مجاهدین د دښمن له کرغېړنو زندانونو څخه ازاد شول.

۲ـ له دوحې تړون وروسته هغه مظلوم هیوادوال چې هره شپه به د اشغالګرو په چاپوکي له وحشت او ړندو بمباریو څخه کړېدل، تر ډېره حده په امن شول.

۳ـ په تېر یوه کال کې دکابل اداري څخه (۱۳۶۵۱) تنه عسکر او دولتي کارمندان را بېل او طالبانو ته تسلیم شوي دي.

۴ـ د امریکا په شمول د نړۍ هیوادونو طالبان د یوه نظام په توګه په رسمیت وپیژندل، اوسمهال ډېری هیوادونه له طالبانو سره رسمي اړیکي لري او ډېر نور ورسره د اړیکو جوړولو هڅه کوي.

۵ ـ که څه هم د دوحې تړون موافق طالبانو پر لویو ښارونو او مراکزو بریدونه، نه دي کړي، خو مظلوم هیوادوال یې د هغو عسکرو له ظلم او

وحشت څخه خلاص کړل چې په ځینو ولسوالیوکې یې ډېري قرارګاوي او پوستې درلودې او خلک یې ځورول.

۶: د دوحې له تړون وروسته د هیواد سیاسي وضعیت د طالبانو په ګټه روان دی، هغه سیاسي څېرې چې طالبان به یې یو وخت په ترهګرو او پردیپالو یادول؛ اوسمهال ټول د طالبانو د برحقې داعیې مدافعین دي او د هیواد د استقلال او اسلامي نظام لپاره خپله مبارزه په ازاد ډول مخته وړي.

۷ـ افغانستان کې له تړونه مخکې د اشغالګرو امریکایانو شمېر ۱۳۰۰۰ تنه وو چې اوس ۲۵۰۰ تنو ته را ټیټ شوی دی او هیله ده چې په راتلونکو دوو میاشتوکې به دا دوه نیم زره هم افغانستان پرېږدي.

ددې هر څه سره سره که څوک بیا هم وایي چې د دوحې تړون هیڅ کومه ګټه ونه کړه او هیڅ لاسته راوړنه نه لري؛ نو دا به په دووګوتو لمر پټول او له واقعي حقایقو تېښته وي.

❊ ❊ ❊

# مانعین صلح و ثبات در کشور کیها اند؟

مفتي نور محمد متوکل

نویسنده و محقق امور سیاسی ودینی کشور

الحمد لله الذي أنجَز وعده، ونصر عبده، وهزم الأحزاب وحده والصلوة والسلام علی من لا نبی بعده.امابعد

**فأعوذبالله من الشيطان الرجيم. بسم الله الرحمن الرحيم. {والصُلْحُ خَيْر}**

نویسندگان،ادیبان،صاحب نظران،مهمانان گرامی ،مجاهدین غیور واشتراک کنندگان محترم سمینار تحلیلی صلح!

السلام علیکم ورحمت الله وبرکاته! خوشحال هستم که امروز بمناسبت یک روز تاریخی نظر خود را بشکل یک مقاله با شما شریک می سازم. خداوند متعال می فرماید{والصلح خیر} صلح خیر و سعادت است.

حضّار محترم! صلح بدون عدالت معنی نمی دهد؛ عدالت زمینه ساز صلح حقیقی و پایدار است و از سویی این صلح و امنیت گسترش دهنده عدالت بوده و تربیت انسان ها و سعادت بشر راکه هدف انبیای الهی است، تحقق می بخشد. ساختار ضدانسانی و ناعادلانه روابط بینُ المِلل را مخل صلح و امنیت جهانی می داند. این ساختار ناعادلانه، ساختارهای فرعی ناعادلانه را در بر می گیرد که هرکدام با شاخص های خود تامین کننده منافع ابرقدرت ها، مستکبران و ضایع کننده حقوق مظلومان است. مهمترین هدف انبیای الهی و یکی از اهداف دین مبین اسلام، برقراری عدالت و صلح جهانی بوده است.

## مانعین صلح و ثبات در کشور چه کسانی هستند؟

پس از آنکه پیمان تاریخی دوحه بین امارت اسلامی افغانستان و امریکا، بعد از یازده دور مذاکراتِ رسمی، در دهم حوت ۱۳۹۸ش توسط محترم «ملا عبدالغنی برادر» معاونِ سیاسی امارت اسلامی و «زلمی خلیل زاد» نماینده ایالات متحده آمریکا با حضور وزیران خارجه و نمایندگان بیش از ۳۰ کشور منطقه و جهان، و همچنین نماینده های ویژه برخی ازکشورها برای افغانستان در دوحه پایتخت قطر بصورت رسمی امضا شد، از یکسو امیدها برای رسیدن به صلح و پایان جنگ درکشور زیاد شد، و از طرف دیگر برخلاف توافق نامه، تحرکات برای سبوتاژ پروسه صلح از سوی بعضی حلقات و چهرهای جنگ طلب، خود غرض، جاه طلب و نشسته بر اریکه قدرت در داخل و خارج کشور آغازگردید و همواره جریان دارد. اینها از هر راه ممکن تلاش می ورزندکه به پیمان دوحه صدمه واردکنند و به اشغالگران قناعت بدهندکه حضورشان در افغانستان لازمی است و بیرون شدن آنها از این کشور اشتباه بزرگ می باشد.

به تعقیب همین تلاش های نافرجام، یکعده چهرهای جنگجو در قلب کابل و بعضی ولایات دیگر انفجارات و ترورها را شدت دادند، تا به جهان نشان بدهند، که طالبان به توافق نامه دوحه متعهد نیستند. در حالیکه امارت اسلامی پیمان دوحه را بطور احسن عملی نموده است و از جانب مقابل هم می خواهدکه به معاهده پایبند بماند، و از افواهات حلقات مغرض و ضد صلح متاثر نشوند.

هنگامیکه گفتگو ها بین تیم مذاکراتی امارت اسلامی و جهت امریکایی جریان داشت و امید می رفت که در آینده نزدیک توافق نامه صلح امضاء شود، در پهلوی دیگر تلاش های ناکام مانعین صلح، یک نامه رئیس ارگ به بیرون درزکرد که به ترامپ رئیس جمهور آمریکا فرستاده بود، در آن نامه از

رئیس جمهور ترمپ مطالبه شده بود که نیروهایش را از افغانستان بیرون نکند یعنی به اشغال خود ادامه بدهد و ما مصارف خود را کاهش می دهیم، به عوض هژده قسم گوشت به هشت قسم گوشت قناعت می کنیم ! لیکن ایالات متحده آمریکا عساکر خود را بیرون نکند.!

پس از افشاء نامه مفکر اراده شوم حلقه حاکم در قبال صلح برای مردم آشکارگردید؛ نگرانی ها وتشویش های مردم نیز در مورد صلح زیاد شد. واقعاً رئیس ارگ و تیم آشتی ناپذیراش، آهنگ ناخوشایند تخریب پروسه گفتمان صلح را همواره می نوازد و در قبال صلح عملاً اقدام به ایجاد موانع و دست به اظهارات ضد ونقیض زده اند. این نمایان گر اعمال زشت و اراده شوم این کتله سخیف در برابر اراده ملت بزرگ و صلح خواه کشور می باشد.

علاوه بر این ،همه روزه بیانیه ها و اظهارات جنگ طلبانه، عقده ای و نفرت برآنگیز از سوی آن حلقه کوچک ارگ که اصلاً به تقدس صلح هیچ باور و اعتماد ندارند ادامه دارد، اینها میخواهندکه با حرف های غیر منطقی خویش اراده افغانها در قبال صلح را تضعیف کنند، اما اینچنین نیست، اینبار ملت افغان پس از چهار دهه جنگ طولانی فقط و فقط به صلح و آشتی باور دارند و بس، ان شاءالله بعد از این اهداف شوم هیچ کس در اینجا عملی نخواهد شد.

معاون اول رژیم کابل امرالله صالح که در چهره های ضد صلح مقام اول را دارد، تمامی سخنان وکانفرانس های خبری اش پر از حساسیت و جنگ طلبانه می باشد، این چهره جنگ طلب در ادامه حرف های تخریبی خود می گوید: اگر زندانیان طالبان اعدام شوندکشتارهای هدفمند متوقف می شود. من از این آقا می پرسم که شما بارها لاف زدیدکه: تمام نقاط شهرکابل تحت پوشش دوربین ها وکامره های مخفی وکشفی قرار دارد، پس چرا پلان طالبان را خنثی نمی کنید؟

چرا عاملین ترورها را مستند به ملت نشان نمی دهید؟ حتی وارثین بعضی مقتولین بارها خواستندکه جی پی ایس و حافظه کامره های مخفی چیک شود چرا آماده نیستید؟ چرا قناعت شان را فراهم نمی کنید؟

چرا علماء و استادانی ترور می شوندکه برعلیه رژیم کابل موضوع گیری می کنند، کسانیکه جنایات و فساد ارگ نشینان را برملا می سازند وصدای صلح خواهی را بلند می کنند؟

آیا این را عقل سلیم تقاضا می کند: طالبان کسانی را تروركنندكه در قلب دشمن و بر علیه دشمن شان بیانیه می دهند؟ این را هیچ انسان با وجدان نمی پذیرد.

بناءً بصراحت تام گفته میتوانیم که در عقب این همه قتل های زنجیره ای و مرموز و ترورکدرهای علمی، علماءکرام، استادان پوهنتون ها و فعالان صلح، حلقه ارگ و بطور خاص امرالله صالح قرار دارد و ملت هم این را می داند، باز باکمال چشم سفیدی نسبت آن را به مجاهدین می کند، همینگونه او با بلند پروازی زیاد آنهم در اوج غلامی، توافقنامه دوحه بین آمریکا و امارت اسلامی را "پر از نقایص" می‌داند و می گوید توافقنامه دوحه را به دو برگ توت هم نمی‌خرد ،این در حالیست که بارها از امریکا خواستندکه در خروج نیروهایش عجله نکند ورنه یک زلزله سیاسی رخ می دهد{رژیم کابل سقوط می کند}. اگر شما سخنان او را بشنوید برایتان بوضوح معلوم خواهد شدکه موصوف اصلاً طرف دار صلح نبوده، و هیچ یک از اظهارات و عمل کردهایش امیدوارکننده نیست، او می خواهدکه به نحوی از آنجا پروسه صلح را با مخاطره مواجه و ناکام بسازد! اما این آرمان و هدف شوم او هیچگاه پوره نخواهد شد.

همچنین معاون دوم ارگ سرور دانش، چنان گمان می کندکه گویا صد فیصد خاک افغانستان را درکنترول دارد و در هر سخنرانی اش اخطار به جنگ می دهد، در حالیکه در قلب کابل، آشکار و مطمئن گشت وگذارکرده نمی تواند و هنگام بیرون شدن در میان ده ها موتر زرهی و شیشه سیاه پنهان می شود.

همینگونه مشاور امنیت ملی قلعه جنگی{ارگ} محب هم هر سخن اش خالی از جنگ و شمشیر زدن نیست، در هر سخنرانی به عوض سخنان مؤثق و مدلل اظهارات بی منطق وا تهامات دور از حقایق می بندد، او در یکی از اظهارات مغرضانه خویش گفت: باید ملل متحد تحریمات وضع شده علیه طالبان را ادامه دهد و بر آنها{طالبان} فشار وارد شود، تا به خواسته های نامشروع ما تن بدهند، مانند این و دیگر ... یاوه سرایی ها.

علت این همه یاوه گوی ها اینست که موصوف از لحاظ سن هم خورد است و آن وقت اندک را هم در دامن بادارانش درخارج سپری نموده است، در مورد افغانستان از معلومات درست و تجربه پخته برخوردار نیست، لذا خود برایش ستاره فلمی معلوم می شود، باید بداند! که این مستی در افغانستان برای هیچ کس دوامدار نیست، هرگاه محب در موردکشور و ملت افغان از حقایق و معلومات معتبر آگاه شود مستی مؤقتی اش دور خواهد شد.

اگر اینها می خواهندکه با چنین اظهارات غیر موجه پروسه جاری صلح را سبوتاژکنند، و یا می خواهندکه آمریکا را از اراده خود { بیرون ساختن عساکر اش از افغانستان} منصرف بسازند، یاخواهان تداوم اشغال امریکا باشند و فکر می کنندکه آمریکا و متحدین اش برای همیش در افغانستان بمانند، غلط کرده اند، زیرا امریکا و متحدینش نزدیک به بیست سال در اینجا جنگیدند، بهای سنگین جنگ را پرداختند و در مقابل هیچ سودی بدست نیاوردند. لذا دیگر نمی خواهندکه جنگ، بیش ازاین به درازا بکشد.

آمریکا و متحدین اش فقط دوگزینه دارند:

اول اینکه آمریکا و متحدینش پیمان دوحه را نقض نموده و به یک جنگ طولانی و طاقت فرسای دیگرکمر ببندند،که این نه برای آمریکا مفید تمام خواهد شد و نه هم برای متحدین اش، زیرا استراتیژی جنگ در افغانستان ناکام است، و اگر بجنگ اصرارکنند، باز هم مانند سابق ملت مجاهد افغانستان موفق و برنده میدان خواهند شد. ان شاءالله.

دوم اینکه آمریکا همراه بامتحدین اش طبق معاهده دوحه نیروهای خود را از افغانستان بیرون سازند و افغان ها را بگذارندکه به رضایت خود یک نظام اسلامی و همه شمول برپا نمایند، این همان آرمان دیرینه ای است که بخاطر پوره ساختن آن قربانی های فراوانی داده شده است.

در اخیر یکبار دیگر یاد آور می شوم که مانع اصلی فرا راه صلح، همین رژیم کابل است. باید از مخالفت با پروسه صلح دست بردار شود. دیگر حلقه حاکم بر ارگ نباید ملت را قربانی اهداف نامشروع خود ساخته و به سخنان بیهوده و تلاش های ناکام و تخریبکارانه ادامه دهد. من متیقنم که امریکا و ناتو از این کشور رفتنی هستند و خواهند رفت. ان شاءالله

❊ ❊ ❊

## د دوحې تړون د یوه کال په اوږدو کې

عبدالولي خلیل
لیکوال او د سیاسي چارو څارونکی

یوکال وړاندې (۱۳۹۸ل) دکب په لسمه د امریکا او طالبانو تر منځ د قطر په دوحه ښارکې له افغانستانه څخه د اشغالګرو قواوو د وتلو تاریخي تړون وسو، د تړون اساسي موضوعات دا وو چې په راتلونکو څوارلس میاشتو کې به ټول راغلي اشغالګر بتدریج په کامله توګه افغانستان تخلیه کوي، په لسو ورځوکې به د طالبانو پنځه زره بندیان خوشي کیږي او په بدل کې به طالبان د کابل اداري زر تنه بندیان ایله کوي، له دې وروسته به بین الافغاني مذاکرات شروع کیږي او د سولې پروسه به نوره هم په چټکۍ سره پر مخ بیایې تر څو په هیوادکې د امن فضاء رامنځته سي او یو همه شموله اسلامي حکومت جوړ سي.

دا چې اوس د یادې هوکړې یوکال پوره کېدونکی دی، اوس له کوم جریان سره مخ ده او مخته یې څنګه وارزوو، په لاندې کرښوکې به یې ولولو.

### د تړون اهمیت او لاسته راوړنې یې

د امریکا د شکست او د افغانستان اسلامي امارت د خپلواکۍ تړون د دواړو لوریو لپاره نهایې مهم او مثبت ګام و، امریکا دلته شل کاله خپل ټول قوت صرف کړ، نه یې کوم هدف تر لاسه کړ او نه خپلو موخو ته ورسېده، د یاد یرغل په وړاندې یې حوصله نوره ماته او زور یې اوبه و، تړون دوی ته ډېر مهم او له افغانستان د وتلو یوه آسانه لار وه چې دوی د ځان لپاره غوره کړه.

او د افغانستان اسلامي امارت لپاره هم خورا ارزښتناکه موقع وه چې ترې استفاده یې وکړه؛ ځکه د شل کلنو قربانیو په نتیجه کې خپل هدف ته ورسېدل او له خپل هیواده یې د اشغال تور ټغر ټول کړ چې د یاد تړون له مخي به ټول راغلي تاړاکګر افغانستان پرېږدي او خپل یرغل ته به د پای ټکی ږدي.

د دوحې تړون د دواړو لوریو ته مهمې لاسته راوړنې لري، له لویو لاسته راوړنو څخه یوه همدا چې د افغانستان اسلامي امارت پنځه زره بندیان (چې کلونوکلونو یې د بګرام، څرخي او نوروکرغېړنو زندانونوکې شپې او ورځې تیرولې) د یاد تړون له مخي خوشي شول، د دې په شمول د تړون په پایله کې د امریکایانو سره اوربند رامنځه شو چې مجاهدین او افغان مظلوم اولس مو د شپنیو بې رحمه چاپو او ړندو بمباریو څخه په امن شو، په سیاسي برخه کې طالبان له یوه ستر برم سره نړیوالو هیوادونو ته مطرح شول، سیمییزو هیوادونو ته یې د سیاسي دفتر د غړیو سفرونه وشول چې له شک پرته مثبتې پایلې لري، او داسي نورې ګټې...

## د تړون په عملي کولوکې د دواړو لوریو رول

د افغانستان اسلامي امارت له خپله اړخه دکب د لسمې د تړون هره ماده د ټاکل شوي مهال ویش سره سم په صداقت او ریښتینولۍ سره عملي کړې ده، د تړون را وروسته لومړی پړاوکې دکابل اداري دزرو تنو بندیانو خوشې کول وو چې د افغانستان اسلامي امارت د حسن تعامل لامله مخکې تر دې ټول آزادکړل چې خپل بندیان یې لا د دښمن په زندانونوکې وو، له دې وروسته بین الافغاني مذاکراتو ته چمتوالی و چې د افغانستان اسلامي امارت ټیم بشپړ تیار وو خو د مقابل لوري د ټیم غړي لا نه و تعین سوي.

له امریکایانو سره اوربند ته د توافقنامې په چوکاټ کې خورا ژمن پاتې شوو چې د امریکا د وزیر خارجه په اعتراف چې له توافقنامې وروسته زموږ کوم امریکايي فوځي په افغانستان کې نه دی وژل شوی، همدا راز نورو مادو ته ژمنتیا يې.....

مقابل لوری (امریکا) هم تر یوې اندازې تړون ته ژمنه پاتې شوې ده چې د هیواد په ګڼو ولایتونوکې له پنځو تر لسو پوري سترې فوځې اډې تخلیه کړې او لا یې د انخلاء لړۍ جاري ساتلې، خو متأسفانه ځینو ځایونوکې یې له توافقنامې څخه ښکاره سرغړونې هم کړي دي چې په غیر جنګي سیمو او جنګي حالاتوکې یې پر مجاهدینو او عام اولس باندې بمبارونه کړې او هغوی یې په شهادت رسولي دي، ډېر ځله یې د داخلي ګوډاګیانو سره په شپنیو چاپوکې هم ونډه اخیستې او داسې نور... چې دا د تړون د عملي کولو په وړاندې منفي ګامونه دي او په وار وار د ا. ا. ویاندویانو دوی ورته متوجه کړي او دا ډول کړنې یې غندلې هم دي.

## دتړون په وړاندې خنډونه

دکابل غلامه اداره چې د اشغال د ملاتړ په پایله کې پر افغانانو تپل شوې ده او خپله بقاء هم د اشغال په سیوري کې ویني، دوی هیڅکله نه غواړې چې دا هیواد دې د امن ساه واخلي او تل دې خپلواک وي؛ ځکه که اشغالګر ولاړ شي نو د یادې ادارې واک به هم ورسره ختم شي، دوی د خپل واک د غځولو لپاره د تړون په وړاندې له هیڅ یو ډول خنډونو، دسیسو او سوله ضدکړنو څخه دریغ ونه کړ او د سولې د سبوتاژ مختلفې هڅې یې تکرار کړې.

دوی د بندیانو آزادول په یوه او بله بهانه وځنډول، جرګې یې پرې راوغوښتلې، نوروکفري هیوادونو ته یې خبرداری ورکړ چې که دا بندیان

خوشي شي نو هیوادونوکې به مو د نشیې توکو مراکز جوړ شي او امنیت ته به مو جدي ګواښ متوجه شي.

کابل حکومت په درست هیوادکې د سولې داعیان او ملاتړي ترورکړل، مسجدونه، مدرسې او مکتبونه یې په یوه او بله بهانه تر بریدونو لاندې راوستل، په اولسي مجموعو، میلو او هوټلونو باندې یې ړندې توغندۍ وار کړي او بیا به د شومو تبلیغاتو په وسیله پړه پر طالبانو واړوله.

کله چې د سولې د سبوتاژ دغه هڅې ناکامه شوې نو بیا یې د بهرنیو قوتونو د راپارولو هڅې پیل کړې آن تر دې چې غني په واشنګټن پوسټ کې یوه اوږده مقاله خپره کړه او اشغالګرو ته یې دا تأثر ورکړ چې که دوی افغانستان پریږدي نو لوی خطرونه به ورته پېښ شي.

لا هم دغه د واک تږي او د سولې دښمنان سترې نه دي اوس یې د امریکا د نوي اولسمشر جوبایډن په وړاندې دغه دریځ نیولی چې باید د دوحې توافقنامه باندې له سره غور وکړي.

خو لله الحمد لکه څنګه چې د سولې په وړاندې د مکارې ادارې د تېر یوکال ټولې پلانوونکي دسیسې شنډې شوې همداسي به نور پلانونه هم کومه مثبته ګټه ورته ونکړي.

## که خدای مه کړه تړون مات شي

له شک پرته د دوحې تاریخي تړون د دواړو لوریو لپاره د یوې سترې خونړۍ جګړې څخه د وتلو یو آسان حل دی، او د دواړو لوریو علیا ګټې پکې نغښتې دي، البته د طالبانو په نسبت امریکا ته لا نور هم ګټمن او مؤثر تمامېدلای شي؛ ځکه امریکا د یوه ستر غرور پر نیلي سپره دلته راغلې وه او خپل ټول زبرځواک یې دلته وازمایه، خوکوم اهداف یې تر لاسه نه کړل، بل لوري ته د نړۍ د سپر پاور دعوه ګیره هم ده، پر ځای د دې چې له نظامي

لاري شرمنده، شکست خوړلې ولاړه شي، سياسي حل به ورته په عزت تمام شي.

خو دا چې د امريکې د نويو انتخاباتو په نتيجه کې د ټرمپ ځای ته جوبايډن راغلی، نوموړی داسي اشارې ورکوي چې د تړون مادې په ټاکلې موده کې نه شي پوره کولای، که امريکا له مهال ويش سره سم خپل ټول عسکر له افغانستانه ونه وباسي، نو دا د دوحې له تړون څخه د امريکا ښکاره سرغړونه ده.

په باور سره ويلای شو چې د افغانستان اسلامي امارت سولې ته په هره معنا ژمن دی او تر اوسه پوري هيڅ کوم جهت د تړون د نقض داغ نه سي باندې ثابتولای، که بيا هم مخالف جهت تړون مات کړي، همدومره موده نوره جګړه وغځوي لا به هم د دغه اسماني ځواک مورال مات نه کړي، طالب لا وسله په غاړه په سنګرکې مبارزه کوي، له هره پلوه ورځ تر بلې قوي کيږي، د تړون د نقص په صورت کې د جګړې کلک هوډ لري، د تړون نقض به د امريکې د نړيوالي شرمندګۍ لامل جوړ شي، امريکا دي دلته له شکست خورده انګريزانو، شورويانو او د خپل اشغال له تيرو شلوکلنو پند واخلي چې افغانستان هضمول خورا ګران دی، پر تېر عمر دي غور وکړي چې دلته يې له افغانانو هغه ګزارونه وخوړل چې نسلونه نسلونه به له روعبه لړزيږي، نه په هوا کې تري خوندي شول او نه پر ځمکه، نه په پټن ځايونوکې او نه پر هواره؛ بلکې په هر ځای کې د غازيانو د ښار اوګذار ښکار شول، بايډن دې پر خپل اولس او فوځونو رحم وکړي نور دې د جنګ ترخه تجربه نه تکراروي، که تکرار يې کړي نو د هرڅه مسؤل به امريکا وي. پای

❊ ❊ ❊

# د دوحې تړون نه تنفیذ به
# سیمه او نړۍ دواړه بې ثباته کړي

عابد - لیکوال او څېړونکی

په ۱۹۷۹ کې چې شوروي لښکرې افغانستان ته راغلې او دغه مستقل اوخپلواک هیواد یې اشغال کړ، نړدې ټوله اروپا او امریکا په دې عقیده وه چې د شوروي له دې اشغال سره به سیمه اونړۍ ټوله په خطرکې شي له همدې نارو سورو سره یې چې د افغانستان جغرافیایي موقعیت د دې خطر د خپرېدو طبیعی لامل دی؛ د سیمې دهیوادو په ګډون یې ټول یو لاس په وړاندې ودرېدل او د دې خطر د مخنیوي لپاره د مجاهدینو ملاتړ ته په ټوله معنی را وړاندې شول آن چې په مټ یې په ډېره اسانۍ سره د سړې جګړې ډګر په توده جګړه وګاټه.

همدا سرې ستړګې وې چې له مخې یې د اروپا نظامي اتحاد او امریکا دواړه پخپله هم د افغانستان اشغال ته راوړاندې شول او نور یې چې د ځان په وړاندې خنډ او تربور نه ترسترګوکېده، نو دوی هم له هر ژور فکر او سنجش پرته پرې راپرېوتل ټول هغه طبیعي لاملونه یې هم له سترګو پنا شول چې په وجه یې د دې خاورې بې ثباتي د نړۍ بې ثباتي بلله.

خو له شلوکلونو ټولو سیاسي او نظامي تکتیکونو سره سره بېرته د هماغې نظریې خپلولو ته مجبور شول چې د شوروي اشغال په وخت به یې پرې ټول مطبوعات په سر اخیستي وو، همدا لامل و چې له طالبانو سره یې د دوحې تړون لاسلیک کړ او د دې تړون د ترسره کېدو او عملي کېدو لپاره یې

اتلس میاشتې مذاکرات او همدومره موده په سیمه اونړۍ سیاسي منډې تړړې ترسره کړې.

اوس چې په امریکا کې د جوبایډن په مشرۍ نوې اداري حکومت ترلاسه کړ او د دوحې د تړون د بیا ارزونې او په افغانستان کې د امریکایي عسکرو د پاته کېدو خبرې کیږي او یا ویل کیږي چې د دوحې د تړون د لغوه کېدو امکان هم شته، ایا سیمه اونړۍ یې له اغېزو خوندي پاته کېدلی شي؟؛ همدا د بحث وړ موضوع ده.

ولې تړول هغه لاملونه له منځه ولاړل اویا له پامه وغورځول شول چې له مخې یې پر نړۍ خپل عسکر خپرول او د دغو عسکرو خپرولو ته یې د نړیوالو پر سترګو همدا اسباب اوعلتونه ور موښل؟ یابه دا وي چې دا هسې د خلکو غولونه او تېر ایستل دي او په اصل کې پر نړۍ د پراختیاغوښتنې هوسې تیری او حملې دي چې له مخې یې کمزوري هیوادونه لاندې کیږي اویا داچې امریکا اومتحدین یې اصلاً په سوله باوري نه دي او تړوله اتکا یې پرجنګ او ترووریستي اعمالوده، که داسې وي، دلته په افغانستان کې شل کلنې اوږدې مودې ته په کتو خو موهم په جنګ او د وسلو په زور څه ونه کړل او بیا د دوحې تړون ترسره کولو ته ولې په دومره نړیواله او سیمه ایزه پیمانه سیاسي هڅې او منډې تړړې ترسره کېدلې؟

که امریکا یوځل بیا د جنګ لار نیسي او د دوحې تړون ته اعتبار ور نه کړي، د سیمې په سطحه ترکیې، امارات، پاکستان، قطر، سعودي، ترکمنستان، تاجکستان، هند، چین، روسیې او نورو هیوادونو ته د خلیلزاد منډې تړړې او نړۍ ته د امریکا له لوري په سوله د باور ورکولو هڅې به څنګه تعبیریږي، د افغانستان لپاره د امریکا د بهرنیو چارو خاص استازی خلیلزاد د امنیت د نړیوالې شورا یوې خبر پاڼې ته په مرکه کې وایي: " چې نړۍ د سولې له خبرو پراخ ملاتړکوي او د امنیت نړیواله شورا د سولې له روانو خبرو او هغه سیمه

ایز تړون څخه هم ملاتړکوي، چې د نړۍ او افغانستان سیاسي هوکړې په بر کې نیسي... " د ښاغلي خلیلزاد دې وعدو او سیاسي هلو ځلو اعتبار او انجام په څه وي؟

له دې سره په څنګ کې به امریکا د خپلو شل کلنو ماتو اوناکامیو جبران په څه کوي چې په افغانستان کې ورسره مخ ده او بار بار یې په خپله خوله په دغو ماتواو ناکامیو اعتراف هم کړی؟

که چېرته امریکا او متحدین یې په هغو وعدو او سیاسي باورونو وفا ونه کړي چې د سیمې هیوادونو ته یې په بار بار ورکړي دي، نو څه فکرکیږي چې د سیمې هیوادونه به بیا په افغانستان کې له مداخلو او لاسوهنو په شا شي؟ هیڅکله نه! بلکې تر پخوا به لازیات شي او هغه هیوادونه به هم زړه ورته ښه کړي چې تر دې دمه یې په افغانستان کې مخامخ لاس نه درلود، په تېره بیا د سیمې هغه هیوادونه چې د سیمې او نړۍ په سطحه مقتدر قوتونه بلل کیږي، نه تنها داچې دلته به د خپلوکټو د خوندیتوب په غرض لاسونه راوړده کړي، بلکې د نورو قوتونو د هرډول وجود او اغېز د مخنیوي او د خپل اثر د شیندلو لپاره به له هیڅ ډول وسیلې لاس په سر نه شي.

داخو به د سیمې په سطحه دا حال شي، په خپله طالبان چې بیا په افغانستان کې څه کول وغواړي امریکا او متحدینو ته د خطر لپاره به هم ډېر څه وکړي، او دا قوت یې ځکه له پامه نه شي غورځول کېدای چې تر دې دمه ورسره امریکا اونړۍ د جنګ او خبرو په مېز څه کړي؛ د دوی په همدغه صلاحیت اوقدرت اعتراف دی.

په افغانستان کې د نورو هغو ډلو د مخنیوي تضمین بیا څوک ورکولای شي چې د دوحې په تړون کې یې د ځان د خوندیتوب لپاره لاسته راوړنه بولي اوله طالبانو یې غوښتي چې که له افغانستان څخه مونږ ته د نورو بهرنیو

مجاهدینو څخه د نه خوړېدو ضمانت راکړای شي نو مونږ له افغانستان څخه خپلې لښکرې باسو. د دوحې د تړون د نه تنفیذ په صورت کې به له دې چارې د خلاصون لاره څه وي او امریکایي پالیسي جوړوونکي څه فکرکوي چې بیا به څه وشي او څه به کیږي؟؟

د دوحې د تړون نه عملي کېدل له دې سره سره چې په نړۍ کې به امریکا له سیاسي لحاظه ډېره بې اعتباره کړي، دا پورته تولې ناخوالې به هم له ځان سره راوړي او هیڅ داسې تضمین بیا هم نه شته چې د دغه پېښو نه رامنځته کېدو ته تېر ووهي، په دې ډول به د دوحې تړون نه تنفیذ له شک پرته سیمې اونړۍ ته رنګارنګ بې ثباتي خپره کړي.

نوکه رښتیا هم سولې ته ژمنتیا موجوده وي او رښتیا هم په سیمه او نړۍ کې د امن برقراري غوښتل کیږي نو نه باید چې په لوی لاس د سولې او امن ستر چانس له لاسه ورکړل شي، په کار ده چې د دوحې تړون تول په تولـه عملي شي او ناقضین یې وغندل شي.

❊ ❊ ❊